﴿ قَدْ أَفْلَحَ مَنْ تَزَكَّىٰ وَذَكَرَ اسْمَ رَبِّهِ فَصَلَّىٰ ﴾

# مقدمة التصوف

من افادات

حضرت العلامة فَرِيدُ دَهْرِهِ وَحِيدُ عَصْرِهِ مولانا و مرشدنا حضرت الحاج خليفه صاحب داد محمد (سلمه الله الصمد) الغزنوی موطناً والواغظی مسكناً والحنفی مذهباً والنقشبندی مشرباً و القرية احمد خان مولداً.

خپر ندوی

خانقاه عاليه مجدديه عمريه

قلعه جواد كابل افغانستان

## دکتاب پېژندنه:

# مقدمة التصوف

لیکوال : شیخ المشائخ مولنا ومرشدنا الحاج
**خلیفه صاحب دادمحمد** (سلمه الله الصمد)

نظرثاني : **شیخ الحدیث خلیفه صاحب دین محمد** (مدظله)

کمپوز : مولوي محمداکرم نعماني، فضل الرحمن فضلي

زیار : مولوي محمد اکرم نعماني

دچاپ شمېر : ۱۰۰۰ توکه

لومړی چاپ : ۲۰۰۷ میلادي

دویم چاپ : ۱۴۳۲ هـ ق / محرم الحرام. ۲۰۱۱ / جون

دریم چاپ : ۱۴۳۴هـ ق / جمادالاولی –۲۰۱۳ / اپریل

خپرونکی : خانقاه عالیه مجددیه عمریه –قلعهٔ جواد - کابل



### دچاپ چارې اوکمپوز ځای

دجامعه ضیاء المدارس دخپرونوتخنیکي څانګه

(اکوړه خټك ) اړیکې :۰۳۳۵-۹۸۰۷۴۲۴ / ۰۰۹۲-۳۳۶-۹۴۷۳۰۰۵

ای میل ادرس : dorrnilodin@vehoo.con

بسم الله الرحمن الرحيم

﴿ أَلَا إِنَّ أَوْلِيَاءَ اللَّهِ لَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴾

# فهرس

بِسمِ اللهِ الرَّحمٰنِ الرَّحِیم

الحمد لله الذی هدانا لهذا وما کنا لنهتدی لولاان هدانا الله. فلله الحمد رب السموات و رب الارض رب العلمین وله الکبریاء فی السموات والارض وهو العزیز الحکیم. و افضل الصلوة واتم التسلیم علی سیدنا محمد و آله واصحابه اجمعین ومن تبعهم باحسان الی یوم الدین و له الحمد تبارك وتعالی ان حفظ لنا هذا الدین بان جعل العلماء ورثة الانبیاء وجعل هذا الارث لاینقطع الی یوم الدین کما اخبرنا حبیب رب العلمین بقوله ﷺ (لا تزال طائفة من امتی ظاهرین علی الحق لایضرهم من خالفهم حتی یاتی امرالله وهم ظاهرون).

بسم الله الرحمن الرحيم

# لومړی بحث

## تصوف څه ته وايي؟

په هر علم کې د دريو لاندينيو امورو پېژندنه ضروري ده:

**۱ ــ تعريف**

**۲ ــ موضوع**

**۳ ــ غايه او غرض**

**د علم تصوف تعريف**: حضرت امام غزالي رحمه الله فرمايي چې: د تصوف علم تقريباً زر تعريفونه لري، چې له هغو څخه موږ يواځې يو څو تعريفونه په لاندې ډول بيانوو. خو حاصل دټولو تعريفاتو دا مقوله ده چې: ((**معرفة النفس مالها وما عليها**

﴿ ۱ ﴾ صوفي منسوب دی صفی ته، یعنې صوفي منسوب دی اهل د صفی ته،لکه رازي چې منسوب دی راز ته. نو صوفي هغه چاته ویل کېږي چې د اهلِ صفا په صفاتو موصوف وي.

﴿ ۲ ﴾ لصوفی کالسحاب یظل کل شئ . ( صوفي لکه وریځ داسې دی چې په هر شي باندې سیوری اچوي. ) نو صوفي هم هرشی د خپل حمایې لاندې راولي.

﴿۳﴾ الصوفی کالارض یمشی علیه بِرٌّ و فاجِرٌ . ( یعنې صوفي داسې ده لکه ځمکه چې هر بر او فاجر نېک عمله او بدعمله تګ راتګ ورباندې کوي، نو صوفي هم ځان داسې عاجز کړی وي لکه ځمکه

﴿۴﴾ الصوفی کالارض یطرح علیها کل قبیح ولا یخرج منها الاکل ملیح. ( یعنې صوفي داسې دی لکه ځمکه په ځمکه باندې هرچې قبیح او پلیت شی ولوېږي نو ځمکه یې تحمل کوي اونه وځي له ځمکې څخه مګر هر ملیح یعنې بهترینه غذا، چې قوام د اشرف المخلوقات یعنې انسان د؛ نو صوفي هم لکه ځمکه د هرډول کدوراتو برداشت کوي اوبیا په نتیجه کې یې د الله تعالیٰ ﷻ قُرب بلا کیف ورنصیب کېږي. یعنې دتصوف په وسیله سره په انسان کې انتهایي تواضع پیدا کېږي اود تواضع په ثمره کې الله

تعالیﷻ دوی ته خپل قُرب یا نږدېکت وربښي. څکه چې ویل شوي دي ( مَنْ تَوَاضَعَ لِلّٰهِ رَفَعَهُ اللّٰه ).

مثلاً حضرت مجدد الف ثانی ( قدس الله تعالیٰ سره ) چې د روافضو ډېر سخت مخالف و او په همدې وخت کې به چې علماء بادشاهانو ته ورتلل نو د انحناء سجدې به یې ورته کولې ، چې حضرت مجدد صاحب رحمه الله ددې کار هم ډېرسخت مخالف و او له دې بدبختو سره یې هم ډېرې مقابلې کړې وې.

یوه ورځ حضرت مجدد صاحب رحمه الله په مراقبه کې په خپلو مقاماتو کې عروج کړی و، تردې پورې چې د حضرت صدیق اکبرؓ مقام ته بلکې تردې هم پورته تللی و او اهل الله د همیش له پاره د انبیاوو(علیهم السلام ) او صحابه وو ؓ مقاماتو ته عروج کوي. نو ده دا خبره کړې وه چې زه د صدیق اکبرؓ مقام ته ورسېدم او له هغه څخه هم تېر شوم. روافضو دا خبره اورېدلې وه، نو جهانګیر بادشاه یې ورباندې خبر کړ چې حضرت مجدد صاحب څان تر صدیق اکبرؓ هم بهتر بولي. هغه حضرت مجدد صاحب خپل حضور ته وباله او ورته یې وویل چې: ته څرنګه څان تر حضرت صدیق اکبرؓ بهتر بولې ؟ حضرت مجدد صاحب ورته په څواب کې وویل چې: زه د اهل السنت والجماعت له ډلې څخه یم او اهل السنت والجماعت دا وایي چې: که څوک حضرت

علي ﷺ هم تر حضرت صديق اكبر ﷺ بهتر وبولي هغه د اهل السنت والجماعت له ډلې څخه نه دہ نو زه به څنګه ځان تر هغه ﷺ بهتر بولم ؟ او بله داچې زه صوفي يم او صوفياء کرام وايي چې: څوک له خبيث سپي څخه ځان بهتر وبولي هغه د تصوف له اهل څخه نه دی، نو زه به بيا څنګه ځان له حضرت صديق اكبر ﷺ څخه بهتر بولم ؟

وګورئ ! په صوفياء کرامو کې څومره عاجزي ده ؟ چې له يوه پليت سپي څخه هم ځان بهتر نه ګڼي خو جهانګير بادشاه سره له دې هم حضرت مجدد صاحب ( قدس الله سره ) دوه کاله بندي کړ او ده مبارک په بنديخانه کې هم خپلو نېکو اعمالو ته دوام ورکاوه. تردې پورې چې ډېر خلک يې په بندي خانه کې خپل مريدان او خليفه ګان جوړ کړل او ويل يې چې زه له جهانګير بادشاه نه ډېر خوشاله يم ، ځکه که چېرته ده زه نه وای بندي کړای نو ما دا خدمت نه شوای کولای. نو ددې حديث شريف مطابق چې ( مَنْ كَانَ لِلّٰهِ كَانَ اللّٰهُ لَهٗ ) او ( مَنْ تَوَاضَعَ لِلّٰهِ رَفَعَهُ اللّٰهُ ) په پای کې ددې تکليفونو نتيجه دا شوه چې په خپله جهانګير بادشاه دحضرت مجدد صاحب مبارک مُريد او زوی يې اورنګزيب د حضرت امام معصوم صاحب خليفه شو او د کورنۍ ټول غړي يې د طريقت تابع شول

دا پورته ځو ترجمې د صوفي وې چې تاسې ته بيان شوې

اوس راځو د علم تصوف موضوع ته.

## د علم تصوف موضوع:

د هر علم موضوع هغه څه ته ویل کېږي چې په هغه علم کې د هغه شي له ذاتي عوارضو څخه بحث کېږي. یعنې هغه عوارض چې دغه شي ته د ذات یا مساوي له جهته عارضېږي اویا په واسطه اخصه سره.

نو په علم تصوف کې د حق سبحانه وتعالی له ذاتي صفاتو یا اضافي صفاتو، یا ذاتي اعتباراتو، یا له قرب بلاکیف د سبحانه وتعالی څخه بحث کېږي.

نو د علم تصوف موضوع د الله تعالی ﷻ ذات دی او د علم شرافت په اعتبار د شرافت د موضوع سره وي،نو علم تصوف اشرف دعلومو دی، ځکه چې موضوع یې ذات د الله تعالی ﷻ دی.

## د علم تصوف غایه او غرض:

دعلم تصوف غرض د رزیله اخلاقو ازاله او په حمیده اخلاقو متصف کېدل دي. یعنې بدکاره صفات لکه: بُخُل، عُجب، رِیَاء، حَسَد، حُبُ الدُنیا، کِبر اوداسې نور له ځانه لیرې کول او نېک صفات لکه حِلم، صبر، توکل، صِدق، رضاء بالقضاء اوداسې نور په ځان کې راوستل د علم تصوف غرض او غایه ده. او یا له

حیاتِ صوري څخه تېرېدل او حیاتِ حقیقي ته رسېدل دي. یعنې دا عام ژوند صوري ژوند دی او په تصوف سره حقیقي ژوندون پیدا کېږي.

د مثال په توګه الله تعالیٰ ﷻ کافرانو ته سره له ظاهري ژوندانه مړه ویلي دي: ((أَوَ مَن كَانَ مَيْتًا فَأَحْيَيْنَاهُ)) الایة \ ((يُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ)) الایه \ ((وَلاَ تَقُولُواْ لِمَنْ يُقْتَلُ فِي سَبيلِ اللّهِ أَمْوَاتٌ بَلْ أَحْيَاء وَلَكِن لاَّ تَشْعُرُونَ ١٥٤))

نو همدارنګه په تصوف سره حقیقي ژوندهم پیدا کېږي او کله چې حقیقي ژوندون پیدا شي بیا په صوري مرګ سره دا ژوندون نه زائلېږي، لکه د شهید.

یو سالک وایي چې:

هرگز نمیرد آنکه دلش زنده شد بعشق
ثبت است بر جریدهٔ عالم دوام ما.

او پښتانه په دې باره کې عجیبه ښه اصطلاح استعمالوي چې پیرانِ پیر صاحب یا فلاني حضرت صاحب جامې بدلې کړې، یعنې داسې نه وایي چې مړ شو بلکې یواځې د جامو بدلول ورته وایي. ملا علي قاري رحمه الله د امام غزالي رحمه الله قول رانقل کړی

دی او وايي چې: ((اولياء الله لا يموتون بل ينتقلون من دارٍ الى دارٍ)) او تفسير مظهري برسېره پردې لا دا هم وايي چې: ((اولياء الله لا يموتون بل ينتقلون من دار الى دارٍ ينصرون اوليائهم ويُدمرون اعدائهم)). يعنې د خدای پاک ﷻ اولياء نه مري بلکې له يوه دار نه بل دار ته، يا له يوه کور څخه بل کور ته ځي اود خپلو دوستانو نصرت او کومک کوي اودښمنان يې هلاکوي.

لېکن ((مَن كَانَ فِي هَٰذِهِ أَعْمَىٰ فَهُوَ فِي الْآخِرَةِ أَعْمَىٰ)) يعنې څوک چې په دنيا کې له حقيقي ژوندانه څخه بې برخې او ړوند وي نو هغه به په آخرت کې هم بې برخې او ړوند وي اود ذِکر الهي خوند او لِذت به نه په دنيا کې ورته پيدا شي اونه په آخرت کې.

غوث ثقلين دې حقيقت ته داسې اشاره کوي چې:

شُکرٌ لله که نه مُردم ور سيدم به دوست

آفرين باد بر اين ہمت مردانۂ ما

يعنې د الله تعالیٰ ﷻ شکر دی چې مړ نه شوم او دوست ته په دنيا کې ورسېدم، يعنې هغه سترګې چې الله تعالیٰ ﷻ مؤمنانوته په جنت کې وربخښي او خپل ديدار پرې کوي هغه سترګې ماته الله تعالیٰ ﷻ په دُنيا کې راکړې اوپه خپل ديدار يې مُشرف کړم،

چې دا حالت د صوفياءِ کرامو په اصطلاح کې د مُشاهدې حالت دی.

سالک وايي:

باحد در لحد تنگ بگویم کای دوست!

آشنایم توئی غیر تو بیگانہ ما

(يعني په قبر کې به الله تعالی ﷻ ته ووايم چې زما ته آشنا وې اوپه تا کې مې فنا او بقا حاصله کړې وه او له تا پرته مې ټول شاته غورځولي وو او راته پردي وو، نو دوست به له دوست سره اوس له مغفرت پرته نوره څه معامله وکړي ؟)

نو د تصوف په وسيله سړی حقيقي ژوند ته رسيږي اوددې خبرې حقيقت داد ی چې څوک په حقيقي ژوندانه سره ژوندی شي نو هغه په صوري مرګ سره نه مري. د حضرت نبي کريم محمد مصطفیٰ ﷺ له مبارکو احاديثو څخه هم داسې معلوميږي: ((قال ﷺ وقد رائيتني في جماعة من الانبياء فاذا موسى ﷺ قائم يصلي.....و اذا عيسى ﷺ قائم يصلي...واذاابراهيم ﷺ قائم يُصلي. \ في قصة المعراج.)) [صحيح مسلم\ج۱\ص۹۲].

امام نووي رحمه الله په دې باندې ډېر لوی او ژور تحقيق کړی دی چې: انبياء کرام عليهم السلام په قبرونو کې څرنګه لمونځ کوي؟ نو خلاصه او لنډيز يې دا را اېستلی دی چې: انبياء کرام عليهم السلام په صُوري مرګ سره نه مري.

(عن ابن عباس رضي الله عنه قال: ضَرَبَ بَعْضُ اَصْحَابُ النَّبِيِّ ﷺ خباءه على قبر وهولا يحسب انه قبر فاذا فيه انسان يقرء سورة الملك حتى ختمها. فاتى النبي ﷺ فقال يا رسول الله! ﷺ ضربتُ خبائى على قبر وانا لا احسب انه قبر فاذا فيه انسان يقرء سورة المُلك حتى ختمها. فقال النبي ﷺ هى المانعة هى المنجية تنجيه من عذاب القبر.) [جامع الترمذى\ج۲\فضائل القرآن فى سورة الملك].

ژباړه: له حضرت عبدالله ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی چې: د حضرت نبي کريم ﷺ له صحابهٔ کرامو رضي الله عنهم څخه ځينو ملګرو په يوه قبر باندې خيمه ودروله او دوی ورباندې خبر نه وو چې دلته قبر دی، نو له ځمکې څخه يې د سوړة المُلک (تبارک الذی) د تلاوت آواز واورېد، نو دغه صحابي رضي الله عنه حضرت نبي کريم ﷺ ته راغی او ورته يې وويل چې: ما په قبر باندې په ناخبرۍ کې خيمه درولې وه، نو د يوه انسان آواز مې واورېده چې د (سورة الملک) تلاوت يې کاوه، تردې پورې چې سورت يې ختم کړ. نو حضرت

نبي کريمﷺ وفرمايل چې: دا سورت مانعه ده، دا سورت منجيه ده، مسلمان ته د قبر له عذاب څخه نجات ورکوي.

نو له دې احاديثو څخه دا ثابته شوه چې انبياء کرام عليهم السلام او اولياء عظام له ظاهري مرګ څخه وروسته بياهم د رب تعالیﷻ عبادت کوي، ځکه چې په حقيقي ژوندانه سره ژوندي شوي دي.



# دوهــم بحث

## د تصوف د ځينو اصطلاحاتو وضاحت

دااصطلاحات د حضرت مجدد الف ثاني رحمه الله لـه معـارفو او کـشفياتو سـره موافـق دي، ځکـه چـې دده مبـارک معــارف او کـشفيات ډېـر قـوي اود خطـاء احتمـال پکـې ډېـر کـم دی، تـردې پورې چې الله تعالی ﷻ دوی ته په ډېرو امورو کې د (حق اليقين) علم ور نصيب کړی دی.

### د علم مقامات او مرحلې:

علم درې مقامه لري:

**[۱] علم اليقين.**

**[۲] عين اليقين.**

**[۳] حق اليقين.**

د مثال په توګه: یو څوک توره وریځ او تالنده ویني، نو د باران په وریدا سره یې (علم الیقین) راشي. بیا چې کله وریځ نژدې شي اود باران څاڅکي په بام ولګیږي نو دباران په وجود یې (عین الیقین) حاصل شي. اوبیا چې کله څوک لـه کوټې نه د باندې ووځي اود باران څاڅکي پرې ولویږي او ونښلي نو د باران په وجود یې (حق الیقین) حاصل شي.

فلهذا د انبیاوو علیهم السلام اود کاملو اهل الله وو په حقائقو د وجوب او په وجود د حق سبحانه و تعالی باندې علم د حق الیقین دی. لیکن په دې باندې پوهېدل چې دوی ته څرنګه علم د حق الیقین ثابت دی، ډېر مشکل دي او یواځې (اهلِ مصداق) پرې پوهېږي. ځکه چې داسې موضوعه الفاظ نه لري چې تعبیر وباندې وشيَ. دا ذوقي او وجداني امور دي چې نه حلول پکې شته اونه سریان. ځینو اهل الله وو تـه لـه الله تعالی ﷻ سره دومره قُرب یا نژدېوالی حاصل شي چې سړی تعبیر ترې نه شي کولای، لکه د بخاري شریف په دې حدیث مبارک کې چې:

( عن ابی هریرة ﷛ قال : قال رسول الله ﷺ إن الله تعالی قال: من عادلی ولیاً فقد آذنته بالحرب وما تقرب الی عبد بشيء احب الی مما افترضت علیه ومایزال عبدی یتقرب الی بالنوافل حتی احببته فاذا احببته فکنت سمعه

الذی یسمع به و بصره الذی یبصر به و یده اللتی یبطش به و رِجله اللتی یمشی بها.) [بخاری\ج۲\ص ۹۶۳]

حضرت نبي کریمﷺ فرمایي: چې: الله تعالیﷻ فرمایي: چې هرڅوک زما له ولي سره دښمني کوي زما له هغه سره د جنګ اعلان دی اوماته بنده نه نژدې کېږي په هیڅ شي سره چې ماته محبوب دي له هغو شیانو څخه چې ما پرې فرض کړي دي. او بیا په نفلو سره ماته نژدې کېږي، تردې چې زما له ده سره محبت پیدا شي او کله چې بنده زما محبوب شي نو زه دده غوږونه شم چې دی اورېدل پرې کوي او زه دده سترګې شم چې دی پرې لیدل کوي او زه دده لاسونه شم چې دی نیول پرې کوي او زه دده پښې شم چې دی تګ پرې کوي.

علامه مولانای رومرحمه الله دې حدیث مضمون ته داسې اشاره کوي او فرمایي:

رو توئی بی یسمع و بیبصر توئی

سر توئی چه جای که صاحب سر توئی

اهل الله وو ته دا مقام له څه نه پیدا کېږي ؟ چې څوک ددوی له مقام څخه بالکل تعبیر نه شي کولای. دا له دې وجهې چې دوی

الله تعالی ﷻ ته په کامله توګه تابع دي. او په حديث مبارک کې راغلي چې: ( مَنْ كَانَ لِلّٰهِ كَانَ اللّٰهُ لَهُ ).

سالک فرمايي:

چون شدی من کان لله از وله

من ترا باشم که کان الله له

يعني څوک چې الله تعالی ﷻ ته په واقعي توګه تسليم شي، د الله تعالی ﷻ بنده شي نو الله تعالی ﷻ دده شي. يعني الله تعالی ﷻ يې بيا په خپله خفاظت کوي.

غرض دا چې علم درې مرحلې لري:

**١ ــ علم اليقين**: لکه يوڅوک له لرې څخه د اور لوګی ويني نو ده ته د اور په وجود باندې علم حاصل شي.

**٢ ــ عين اليقين**: لکه يوڅوک چې په خپله د اور لمبه ويني.

**٣ ــ حق اليقين**: لکه څوک چې د اور لمبې ته خپله ګوته ونيسي او پرې وسوځي.

نو انبياء کرامو عليهم السلام او کاملو اهل الله وو ته په وجود د حق سبحانه وتعالی د حق اليقين علم حاصل دی، خو دا مقام ډېر ضيق دی چې تعبير ترې نه شي کېدلای. يواځې اهل مصداق

چې انبیاء او اهل الله دي؛ وربانديږ پوهېږي، نو ځکه مونږ د امام رباني رحمه الله د کشفیاتو او معارفو څخه بیان کوو چې دی لـه اهـل مصداقو څخه دی. دی مبارک په خپله فرمایي:

من چو غلام آفتابم هم ز آفتاب گویم
نه شبم نه شب پرستم که حدیث خواب گویم

(یعنې زه لـه حق الیقین څخه خبرې کوم او لـه واقعي حقائقو څخه خبرې کوم لکه څوک چې لمر ته له ختلو نه وروسته د لمر په رڼا سره هر شی ویني او په یقین سره خبرې کوي اود خوب لیدلو خبرې یعنې لـه ناقص کشف څخه خبرې نه کوي. [1] او حضرت

---

[1] د حضرت مجدد صاحب رحمه الله معارف دداسې یوې کوتې په شان دي چې څلورو خواوو ته کړکۍ. لرونکې وي اوپه کوټه کې د کتاب متن د نُکتو او حاشیو ترڅنګ ښکارېږي، چې د خطایي احتمال د هغه په مشاهداتو او کشوفاتو کې ډېر کم پیدا کېږي. لکه څرنګه چې ده محترم په خپله ویلي دي:

من چو غلام آفتابم هم ز آفتاب گویم
نه شبم و نه شب پرستم که حدیث خواب گویم

همدارنګه د حضرت مجدد صاحب رحمه الله معارف د شریعت په ټولو احکامو باندې دده مبارک د متابعت له وجې په درجه د تیقن او اُتقان کې معلومېږي لکه دده یوه لنډه کیسه ده کومه چې په (عمدة المقامات) کې راغلې ده:

دی مبارک یوه ورځ په کینې طرف څملاست نو په زړه کې یې الهام وشو چې ستا دا پرېوتل د آنحضرت ﷺ د سُنتو خلاف دي، نو په ښي طرف باندې راواوښت، بیا یې په زړه کې وویل چې سُنت خو له ناستې څخه په ښي اړخ پرېوتل دي، نو بیا کښېناست او له ناستې څخه په ښي اړخ باندې پرېووت. په دې وخت کې د الله تعالیٰ ﷻ له خوا الهام وشو چې د اخلاص او صداقت له مخې ددې یوه سُنت په ژوندي کولو سره (قد غفرت لك ولمن توسل بك بواسطة او بغیر واسطة الی یوم القیمة).

په یوې بلې واقعې کې یې راغلي دي چې: ده مبارک یوه ورځ وویل: چې الحمد لله ما عاجز د جناب حضرت محمد رسول الله ﷺ ټول سُنت په ځای کړي دي. یواځې یو سُنت پاتې ده او هغه دا چې حضرت محمد رسول الله ﷺ د لور له خوا دوه لمسیان یعني (امامین الهُمامین الشهیدین المبارکین رضوان الله تعالی علیهما) په اوږو مبارکو باندې کښېنول اود اوښ غرغرې یې ورسره وکړې. او زما د لور له خوا لمسی نشته چې ما داسُنت هم په ځای کړی وای. ده مبارک خپله لور خپل وراره چې عبدالخالق نومېده اود عبدالرزاق صاحب زوی و ؛ ور په نکاح کړه او وصیت یې وکړ چې کله زما لمسی پیدا شي نو زما په قبر باندې یې کښېنوئ ؛ بیا الله تعالیٰ ﷻ لمسي ورکړل اود وصیت مطابق یې دده مبارک په قبر باندې کښېنول، نو له قبر مبارک څخه یې د خارق العادة په توګه د اوښ غرغرې پورته شوې.

خُلص و فی الجمله معارف و حقائق بلکه کمالات و ولایات سه گانه و نیز کمالات نبوت سه گانهٔ حضرت مجدد رضی الله عنه از چند کلمات درخشان خرقت آمیز لفظاً و معناً که خرق العادة امتی اعجاز نبی متبوع

شمرده شده در مکتوبات قدسی مکتوب بست وششم جلد اول بر آشنایان و بیگانگان هویدا و آشکار است که آن کلمات او متبرکات قرار ذیل است:

عشق آن شعله است کو چون برفروخت
هرچه جز معشوق، باقی جمله سوخت

تیغ لا در قتل غیر حق براند — در نگر زآن پس که بعد لا چه ماند
ماند الا الله باقی جمله رفت — شاد باش ای عشق شرکت سوز رفت
اتصالی بی تکیف بی قیاس — هست رب الناس را با جان ناس
لیک گفتم ناس را نسناس نه — ناس غیر از جان جان اشناس نه

د حضرت مجدد صاحب قدس الله سره په اړه لیکم چې دا هغه شخصیت وو چې له کوچنیوالي څخه د مرګ تر وخته پورې یې خپل ژوند دحضرت سرور کائنات ﷺ د سنتو مطابق تېر کړ دی. دی مبارک په خپله حکایت کوي چې: یوه ورځ له خوبه پاڅېدم نو ومې لیدل چې په کیڼ اړخ پروت وم، نو بېرته په ښي اړخ راواوښتم، بیا مې ووېل چې دا خو دې سُنت په ځای نه کړل، څکه چې سُنت خو داده چې له ناستې څخه په ښي اړخ پرېوزي، نه دا چې له کیڼ اړخ نه په ښي اړخ واوړي. نو بېرته کښېناستم اوبیا په ښي اړخ پرېوتم. نو دی مبارک وایي چې: په دې یوه سُنت سره کوم چې په اخلاص اوصداقت سره مې په ځای کړ؛ الله تعالی ﷻ په ما دومره مقامات طی کړل چې په کلونو کلونو ریاضیاتو باندې نه طی کېدل، دی وایي چې: ما د رسول الله ﷺ ټول سُنت په ځای کړي وو، پرته له دې چې رسول الله ﷺ خپل

مجدد صاحب قُدس سره ته دا مقام د شریعت مصطفوي ﷺ له متابعت څخه پیدا شوی و، تردې پورې چې دآنحضرت ﷺ دومره تابع و چې دی مبارک په خپله وایي چې: زه یوه ورځ په کینې اړخ پروت ووم، چې کله مې پام شو چې دا خو دسُنتو په خلاف پرېوتی یم نو زر په ښي اړخ واوښتم، خو بېرته فکر را پیداشو چې سُنت خو داده چې له ناستې څخه سرې په ښي اړخ څملي نو بېرته کښېناستلم او بیا په ښي اړخ پرېوتم. له دې وروسته راته الهام وشو چې تا سُنت ژوندی کړ اوپه دې اخلاص سره دې ژوندی کړ، نو ( قد غُفِرَتْ لكَ وَلِمَنْ توسل بك بواسطة او بغير واسطة الى يوم القيمة. )

---

لمسي په اوږو باندې کښېنول او بیایې د اوښ غرغرې وکړې اود دده مبارک د لور له خوا لمسیان نه وو نو ځکه یې په خپل ژوند کې دا سُنت عملي نه کړای شوکل، خو کله چې پس له مرګه خدای ﷻ د لور له خوا لمسی ورکړ چې محمد فضل الله نومېده نو هغه یې بیا دده مبارک په قبر سور کړ او له قبر مبارک څخه یې د اوښ غرغرې راپورته شوې. چې په دې ډول یې دا سُنت هم پس له مرګه عملي کړ. نو دده مبارک یو وېښته هم د سُنتو خلاف نه و. دی مبارک وایي چې: په چا کې د یوه وېښته په اندازه د سُنتو مخالفت وي نودهغه ولایت او کشفیات د اعتبار وړ نه دي. نو دده همدا تقوی، زُهد ددې سبب شو چې دده مبارک ولایت برحق او کشفیات یې د اعتبار او یقین وړ دي.

یعنې تا چې د حضرت رسول اللهﷺ سُنت ژوندی کړ نو ما تاته او څوک چې د قیامت تر ورځې پورې ستا اتباع کوي که بالذات وي او که بالواسطه ټولو ته مې مغفرت وکړ.

او همدارنګه دده مبارک په اړه په یوې بلې واقعې کې راځي چې: ده د لور له طرفه لمسیان نه درلودل او یوه لور یې وه چې عبدالخالق ته یې په نکاح ورکړې وه ، نو په آخري عُمر کې یې وصیت وکړ چې آنحضرت ﷺ خپل لمسیان په اوږو باندې سپاره کړي وو اود اوښ په شان یې آواز ورته کاوه، یعنې غرغرې یې ورته کولې او له ما څخه دا سُنت پاتې شوی دی، که زما له مرګ څخه وروسته زما لمسیان پیدا شول نوزما په قبر باندې به یې سپاره کړئ چې دا سُنت هم په ځای شي. کله چې د عبد الخالق صاحب زامن پیدا شول نو دده په قبر مبارک یې سپاره کړل. له قبر څخه د اوښ غرغرې راپورته شوې.

نو وګورئ! چې ده مبارک پس له مرګه هم د حضرت رسول اللهﷺ هغه سُنت په ځای کړل کوم چې په ژوند کې ورڅخه پاتې شوي وو. نو مونږ دده د پوره متابعت له وجهې دده له معارفو او کشفیاتو څخه بیان کوو.

اګر که د اولیاوو مبارکانو الهامات ددوی له پاره حُجت اود نورو له پاره حُجت نه وي، په دوی باندې عمل پرې لازم او په نورو باندې لازم نه وي، مګر د ترقی ذریعه ده.

لکه یو سړی چې د رمضان المبارک میاشت په خپله یواځې ووینې نو په هغه باندې په خپله د روژې نیول لازم او په نورو لازم نه دي.

یعنې یو قطعي حُجت دی لکه وحیې : هغه مُفید د قطعیت دی او مُنکر یې کافر کېږي. او یو ظَنِي حُجت دی. لکه اِلهام چې مُنکر یې نه کافر کېږي.

غرض دا چې مونږ دده له معارفو څخه څکه بیان کوو چې دده کارونه ټول د الله تعالیٰ ﷻ د رضا له پاره وو او ټولو خلکو ته مقبول وو. لکه څرنګه چې دده مبارک له یوه مکتوب څخه په واضحه توګه دا څرګندیږي چې:

مکتوبِ سی و ششم: احوال و مواجید وعلوم و معارف که صوفیه رادر اثناءِ راه دست می دهند نه از مقاصد اند، بل اوهام و خیالات تُربیت بهٖ اطفال الطریقت از جمیع اینها گذشته بمقام رضاء باید رسید که نهایت مقامات سلوک وجذبه است چه مقصود از طی منازل طریقت و حقیقت ماورای تحصیل اخلاص نیست که مستلزم مقام رضا ست از تجلیات سه گانه و مشاهدات عارفانه گذرا

نیده از ہزاران یکی رابہ دولت اخلاص و مقام رضاء میر سانند. کوتہ اندیشان احوال و مواجد را از مقاصد می شمرانند و مشاہدات و تجلیات را از مطالب می انگارند لاجرم گرفتار زندان وہم و خیال میمانند واز کمالات شریعت محروم میگردند . کَبُرَ عَلَى الْمُشْرِكِينَ مَا تَدْعُوهُمْ إِلَيْهِ. اللّٰه يجتبي اليه من يشاء و يهدي اليه مَن يُنِيبُ.

اری! حصول مقام اخلاص ووصول بمرتبہ رضاء منوط بطی این احوال و مواجید است و مربوط بہ تحقیق این علوم و معارف. پس این ہا معدات مطلوب باشد و مقامات مقصود. حقیقت این معنی بصدقہ حبیب اللہ علیہ و علی آلہ الصلوۃ والسلام براین فقیر بعد از دہ سال کامل درین راہ بوضوح انجامید و شاہد شریعت کماینبغی جلوہ گرگشت. ہرچند از اول گرفتاری احوال و مواجید نداشت وغیر از تحقیق بہ حقیقت شریعت مصطفیٰ در نظر نہ بود لکن بعد از عشرہ کاملہ حقیقت امر کماہو بظہور آمد.

الحمد لله على ذلك حمداً كثيراً طيباً مباركاً فيه مباركاً عليه.

ژباړه: يعنې مُريدانو ته چې په منځ د لاړې کې کوم احوال او جذبات او معارف او کشفيات پيدا کېږي دا يو هم مقصود نه

دي، بلکې په دې سره د طريقت هلکانو ته تربيه ورکول کېږي. تردې تولو بايد سړی تېر شي او د الله تعالیٰ ﷻ درضا مقام ته ځان ورسوي، چې دا دسلوک يعنې طريقت آخري مقام دی، ځکه چې دطريقت د رُتبو له حاصلولو څخه مقصود پرته له اخلاص څخه بل شی نه دی. کوم چې د الله تعالیٰ ﷻ د رضا مستلزم دی. بايد سړی د دريو وارو تجلياتو يعنې:

۱ ـ د اضافي صفاتو له تجلياتو.

۲ ـ د ذاتي صفاتو له تجلياتو.

۳ ـ د ذاتي شيوناتو له تجلياتو او نورو مشاهداتو څخه تېر شي. لېکن په زرو کسانو کې يو يو کَس له دغو څخه تېر اود اخلاص او رضا مقام ته ځان رسوي. او کوتاه فکره خلک دا احوال او کشفيات له مقاصدو څخه بولي، نو ځکه د وهم په زندان کې پاتې شي اود شريعت له کمالاتو څخه محروم شي. ( كَبُرَ عَلَى الْمُشْرِكِينَ مَا تَدْعُوهُمْ إِلَيْهِ \ الاية ) يعنې په مشرکينو لوی بار دی هغه توحيد چې ته دوی ته دعوت ورکوې دهغه. لېکن الله تعالی غوره کوي خپل ځان ته هغه څوک چې ورته خوښه يې شي.

دا شان هغه حقيقي توحيد چې صوفيهٔ کرام خلک د هغه خواته وربولي ډېر مشکل دی په هغو کسانو چې اُلفت او محبت ورسره نه لري.

اود اخلاص او رضای الهي دا مقام په دغو معارفو، تجلیاتو او مشاهداتو باندې موقوف دی، نور دوی په خپله مقصود نه دي، بلکې یواځې د اخلاص او رضا مقام ته د رسېدو مُعِدات او اسباب دي. او جناب مجدد صاحب قُدس سِره وایي چې: د اخلاص او رضا دا کیفیت ماته پس له لسو کلونو څخه حاصل شو. غرض داچې دی مبارک په دې مکتوب کې دې خبرې ته اشاره کوي چې: درې ګوني ولایات یعنې: ولایت صُغری، کُبری او عُلیا او همدارنګه د نبوت او رسالت کمالات او اولوالعزمه کمالات او داسې نور احوال یو هم مقصود نه دي، بلکې د خدای تعالیﷻ رضا او په طاعاتو کې اخلاص مقصود دی.

اوس راځو خپل اصلي مقصد ته چې هغه عبارت دی له بیان د حقائقو څخه:



# د حقائقو بیان

**حقائق درې دي:**

**۱ ـــ واجب.**

**۲ ـــ مُمکن.**

**۳ ـــ مُمتنع.**

[۱] حقیقت واجبه: لکه حقیقت د الله تعالیٰ ﷻ چې وجود یې ضروري او عدم یې ممتنع دی.

[۲] حقیقت ممکنه: لکه حقیقت دمخلوقاتو چې وجود او عدم یې دواړه برابر دي. له یوې خوا څخه یې هم محال نه لازمیږي.

[۳] حقیقت مُمتنعه: لکه شریک د باري تعالیٰ ﷻ چې وجود یې ممتنع دی او عدم یې واجب دی او له وجود څخه یې محال لازمیږي. لکه څنګه چې الله تعالیٰ ﷻ فرمایي: ﴿لَوْ كَانَ فِيهِمَا آلِهَةٌ إِلَّا اللَّهُ لَفَسَدَتَا﴾ یعني که په ځمکه او آسمان کې دوه خدایان وای بیا به ځمکه او آسمان دواړه خراب شوي وای.

# د مُمکنه حقیقت ډولونه

حضرت مجدد الف ثاني قدس الله سِره فرمايي چې: حقیقت مُمکِنه په درې ډوله دی: ۱ ــ عالم کبیر. ۲ ــ عالم صغیر. ۳ ــ عالم اصغر. [۱]

[۱] دی مبارک فرمايي چې: عالم مُمکن په درې ډوله دی :[۱] عالم کبیر [۲] عالم صغیر. [۳] عالم اصغر.
عالم کبیر په خپله له عرش، مافوق العرش او ماتحت العرش څخه عبارت دی. عالم صغیر عبارت دی له انسان څخه او عالم اصغر د انسان له قلب څخه عبارت دی.
عالم کبیر په لسو لطایفو باندې مشتمل دی. چې پنځه تر عرش پورته او پنځه تر عرش لاندې دي، چې له خاکي کورې، ناري کورې، هوایي کورې او آبي کورې څخه عبارت دي. او عناصر اربعه هم ورته وايي. دا ځکه چې دوی اصول د اشیاوو دي او حاصل، شیره، نچوړ او نتیجه ددغو عناصرِ اربعه وو نفس ناطقه دی. نو له دې وجې په نفسِ ناطقه کې ډېر کدورت، ظُلمت، ظلمانیت او خباثت پیدا شو، ځکه چې دی د عناصرِ اربعه وو حاصل شو. نو عناصرِ اربعه خو مُکدر، مُظلم او کثیف دي او نفس چې ددوی حاصل ډېر مُکدر، مظلم او کثیف دی، نو دغه خاکي، ناري، هوايي، آبي او نفسِ ناطقه چې عناصر خمسه ، عالم خلق، عالم مشاهده او عالم ناسوت یې هم بولي. عالم مُشاهده یې ځکه بولي چې زمونږ مشاهد دي. عناصر یې ځکه

بولي چې اصول د اشیاوو دي، ناسوت يې ځکه بولي چې له عالم ملکوت څخه مکدر دي، ځکه چې ناسوت په لغت کې مخالفت ، مقابلې او جګړې ته وایي، نو په دې وخت کې هم د هر سالک او انسان مقابله له عالم ارواح سره وي. نفسِ ناطقه يې په جمله د عناصرو کې راوور او له نفسِ ناطقه سره عناصر پنځه شول، ځکه چې نفس ناطقه نتیجه او حاصل ددوی دی.نو دا پنځه لطائف تحت العرش یعنې تر عرش لاندې دي.

او هغه پنځه لطائف چې فوق العرش یعنې تر عرش پورته دي، چې عالم ملکوت ، عالم غائب، یا عالم امر ، یا عالم ارواح يې هم بولي عبارت دی له : نوري قلبي، نوري روحي، نوري سري، نوري خفي او نوري اَخفی کورو څخه چې دا کوري تر عرش پورته یا فوق العرش دي. لکه څرنګه چې لومړنی پنځه تر عرش لاندې وې. خو تر عرش پورته کوري ټولې نوري دي.

عالم امر ته عالم امر ځکه وایي چې: یواځې د کُن په امر سره ددوی وجود منځ ته راغلی او همدارنګه عالم مِلکوت ته ځکه عالم ملکوت وایي چې: له مونږ او تاسو څخه غائب او پناه دي. عالم خلق ته ځکه عالم خلق وایي چې: وجود يې په تدریج سره منځ ته راغلی دی. یعنې په څو شپو کې د خدای تعالی ﷻ د ازلي حکمت له مخې د عالم خلق وجود په شپږو شپو کې منځ ته راغلی دی. او عالم امر ته عالم ارواح ځکه وایي چې: عالم ارواح دی او عالم نور ځکه ورته وایي چې: له نور سره تړاو لري. نو ددوی مرکز فوق العرش شو.

او په خپله مَهدب بام د عرش عالم مثال دی. عالم مثال د هنداري (آیینې) غونډې شی دی. یعنې یوه آیینه ده چې ټول ما مضی (تېر شوي) ټول آینده (راتلونکي) ټول اجساد او اجسام، ټول الوان (رنګونه) ټول نورانیت ، بلکې د دُنیا ټول هغه شیان چې پیدا شوي یا وروسته پیدا کېږي، یا په آخرت کې

لیدل کېږي هلته په همدې هنداري کې منقوش دي. حضرت ابوبکر صدیقﷺ فرمایي چې: یوه ورځ حضرت رسول اللهﷺ ممبر ته ور وخوت او داسې خبرې یې وکړې چې مونږ نه لیدلې، نه مو اورېدلي او نه مو په حفظ کې دومره توان او طاقت و چې ټولې مو حفظ کړې وای، څومره مو چې حفظ کړې هغه مو حفظ کړې. نورې ټولې را څخه پاتې شوې. اوداټولې خبرې یې له عالم مثال څخه وکړې.

هر ولي چې غیب ویل کوي نو له عالم مثال څخه یې کوي. یعنې عالم مثال له عالم امر څخه کثیف دی، لیکن له عالم خلق څخه لطیف دی. یعنې له عالم خلق څخه یې نورانیت زیات دی، خو عالم مثال آیېنه ده، چې ټول شیان پکې منقوش دي. او په حضرت انسان کې د عالم مثال نمونه له خیالي قوې څخه عبارت ده، نو داخیالي قُوه چې په انسان کې وضع شوې ده که چېرته یې له عالم مثال سره تعلق قوي وي نو د هر زر د کشف خاوند جوړېدلی شي او که نه وو نو بیا نه شي جوړېدلای.

عالم صغیر عبارت دی له انسان څخه. چې دا هم په لسو اجزاوو باندې مشتمل دی، چې هر یو جزء یې الله تعالیﷻ له عالم امر څخه جلا کړی دی اود عالم امر دا اجزاوې یې د خپل ازلي حکمت له مخې په عناصرِ اربعه وو او نفسِ ناطقه باندې کوم چې په انسان کې دې عاشقې وګرځولې اوهمدلته یې ځای ورته برابر کړی دی اود عالم خلق کُدُورت یې پرې راوستلی دی، یعنې په هغه نوراني عالم باندې یې عالم خلق ته غلبه ورکړې ده او غُبار یې د عالم خلق پرې اچولی دی. که چېرته عاشقې نه وای نوعالم ارواح به څرنګه له عالم کثیف سره ګُذاره کړې وای ؟ حکمت په دې کې دادی چې د دوی په خپل منځ کې مقابله سره راشي ، څکه چې عالم امر د تل له پاره د علویت ( لوړوالي ) تقاضا کوي اود وجوب د مراتبو خواته بالطبع مائل

کېږي. او عالم خلق د تل له پاره د"طبیعت له مخې دپستي ( ټیټوالي ) د خاصیت تقاضا کوي، چې کله یې مقابله شروع شي نو له وجهې یې انسان له یوه مقام څخه بل مقام ته ترقي کوي. یا په بل عبارت که چېرته یې ترمنځ مقابله نه وای نو بیا له یوه ولایت څخه بل ولایت او کمالاتو د نبوت او رسالت ته به ترقي منځ ته نه وای راغلې. اویه دې مقابله باندې دا حدیث

مبارک چې ( الجهاد ماض الی یوم القیمة ) ډېر ښه تطبیق او صادقیږي چې جهاداکبر هم دی. دا مقابله تر قیامته پورې جریان لري. په دې مقابلې کې عالم امرانسان د عُلویت خواته کشوي. او عالم خلق یې د پستی خوا ته کشوي اود عالم امر اجزاوې یې مُکدر او مظلم کوي. نو اهل الله وو څلور طریقې له پاره د تصفیې او تزکیې د هغو اجزاو چې په عناصرِ اربعه وو باندې عاشق شوي دي؛ وضع کړې دي.

**سوال** : په عالم صغیر کې دوه نورې عُمده اجزاوې هم شته لکه : عقل او قوهٔ خیالي. د هغو یادوونه ولې پکې ونه شوه ؟

**ځواب**: عقل په نفس کې یوه عزیزه قُوه ده، د عقل راوړلو ته څکه ضرورت نشته چې د نفس یادوونه په اجزاوو کې راغلې ده. او خیالي قُوه یې څکه مستقله یاده نه کړه چې خیالي قُوه نسبت نورو اجزاوو ته دومره مستقله نه ده. بلکې په خیالي قوې سره ددغو نورو اجزاوو د کمالاتو تمیز معلومیږي، یعنې چې کله عالم خلق تصفیې او تزکیې ته ورسیږي نو کومه رتبه یې ده ؟اوعالم امر چې تصفیې او تزکیې ته ورسیږي نو کومه رتبه یې ده ؟ چې دا په قوهٔ خیالي معلومیږي . نو له دې وجې چې مستقله ونه بلل شوه ، بلکې لکه چې وایي: (لَوْلاَ الْخِيَالُ لَسَتَرَ الْحَالُ )دا صحیح ده او (لَوْلاَ الْخِيَالُ لَبَطَلَ الْحَالُ) دا جمله غلطه ده. څکه چې خیالي قُوه د حال له پاره موقوف علیهٔ نه ده.

**عالمِ کبیر:** عبارت دی له ما فوق العرش او ماتحت العرش او په خپله له عرش څخه.

**عالمِ صغیر:** عبارت دی له انسان څخه.

**عالمِ اصغر:** عبارت دی له قلب (زړه) د انسان څخه.

**عالم کبیر:** اوس مجدد صاحب قدس الله سره فرمایي چې: عالم کبیر له لسو اجزاوو څخه مُرکب دی، چې پنځه مافوق العرش دي لکه:

(۱) کُرهٔ لطیفهٔ قلبي. (۲) کُرهٔ لطیفهٔ روحي، چې له کُرهٔ لطیفهٔ قلبي څخه فوق ده. (۳) کُرهٔ لطیفهٔ سري چې له کُرهٔ لطیفهٔ روحي څخه فوق ده. (۴) کُرهٔ لطیفهٔ خَفي چې له کُرهٔ لطیفهٔ سرِي څخه فوق ده. (۵) کُرهٔ لطیفهٔ أخفی چې له کُرهٔ لطیفهٔ خفي څخه فوق ده. دا پنځه لطیفې له عرش څخه فوق دي او د عرش محدب یعنې بام د عالم مثال مرکز دی. عالم مثال له عالم امر څخه کثیف دی، چې لطائف خمسه دي او له عالم خلق څخه لطیف دی. چې له دې عالم مثال څخه په لوح محفوظ یا په عقل یا په قلم سره تعبیر کېږي. او په همدې عالم مثال

---

مثلاً مجانین (لېونیان) علم حال لري، لېکن خیالي قوه نه لري. نو اهل الله وو ددغو لسو اجزاوو د تصفیې او تزکیې له پاره څلور طریقې وضع کړې دي.

کې د ټولو امورو نقش که ماضي دي او که تر قیامته پورې راتلونکي دي موجود دي. یعنې په عالم مثال کې د ټولو شیانو نمونه موجوده ده او کوم نبي علیه السلام یا ولي رحمه الله چې له مغیباتو څخه بیان کوي هغه ته د لوح محفوظ یا عالم مثال کشف وشي. لکه چې په حدیث شریف کې راځي:

(( عن ابی سعید الخدری رضی الله عنه قال: صلی بنا رسولُ الله ﷺ یوماً صلوة العصر بنهار ثُم قام خطیباً فلم یدع شیئاً یکون الی قیام الساعة اِلّا اخبرنا به حفظهُ مَن حفظهُ ونَسِیَهُ مَن نسیهُ .\ الحدیث)) [ترمذی\ ج۲\ص۴۲\ باب ما اخبر النبی ﷺ اصحابه بما هو کائن الی یوم القیامة].

ژباړه: حضرت ابی سعید خدری رضی الله عنه فرمایي چې: یوه ورځ حضرت نبي کریم ﷺ د مازدیګر د لمانځه له کولو نه وروسته ودرېده او ټول هغه څه یې بیان کړل چې تر قیامته پورې پېښېدونکي وو، نو چاچې څه زده کړل هغه یې زده کړل او له چاڅخه چې څه هېر شول هغه هېر شول.

دا مخکې دعالم مثال بیان وو.

اود عالم کبیر نور پنځه اجزاوې له عرش څخه لاندې دي چې: هغه له څلورو عناصرو څخه عبارت دي: (۱) خاوره. (۲) اور. (۳) اوبه. (۴) هوا. او پنځم یې ددغو څلورو د ترکیب شیره او مغز (نفسِ ناطقه) ده. له عرش څخه پورته شیانو ته عالم امر او عالم ارواح وايي. او له عرش

څخه لاندې شیانو ته عالمِ مشاهده او عالمِ ناسوت وایي. اودا عناصرِ اربعه چې ذکر شول د ټولو مخلوقاتو اصول دي.

او حضرت مجدد صاحب (قدس الله سره) دغو پنځو لطائفو ته جواهرِ خمسهٔ کامله وایي کوم چې بالفعل کمالات لري. داسې نه لکه څنګه چې حکماء وایي چې: جواهر خمسه دادي: ۱ ـ صورت جِسمي. ۲ ـ هیولي. ۳ ـ جسم طبعي. ۴ ـ عقل. ۵ ـ نفسِ ناطقه. ځکه دا یو هم بالفعل کمالات نه لري. نو حضرتِ مجدد صاحب رحمة الله علیه وایي چې: (چند خذف راجمع کرده وبرآن حکم جوہر کرده) یعنې یو څو کودړي یې راغونډ کړي او د جواهرو حکم یې پرې کړی دی.

دا عالم کبیر و چې له لسو شیانو مرکب و، چې پنځه فوق العرش لو پنځه لاندې تر عرشه سره له عرشه دي.



# د انسان د پیدایښت ډولونه

**د انسان پیدایښت په درې ډوله دی:**

۱ ــ کاملان او واصلان انسانان دي.

۲ ــ د طریقې د کمال هغه سالکان دي چې په کاملو واصلانو او مقربینو سره نومول شوي دي. او همدرانګه ابرار او اصحاب الیمین هم ورته ویل کېږي.

۳ ــ هغه انسانان دي چې: په ځمکې باندې ثُبات لري او لکه ازغي یا نورو مُضرو شیانو غوندې مُضِر دي او په اشرارو سره هم یادېږي. او همدارنګه اصحاب الشمال هم ورته وایي.

اول ډول چې له کاملانو او واصلانو څخه عبارت و؛ بیا په دوه ډوله دي:

۱ ــ اول ډول یې له هغو انسانانو څخه عبارت دی چې تام عروج یې کړی وي او تام شوق او ذوق ته رسېدلي وي او په همدې شوق او ذوق کې مستهلک او مستغرق وي او د خلکو د خدمت له پاره یې عالم خلق ته نزول نه وي کړی.

۲ ـ دوهم ډول یې له هغو انسانانو څخه عبارت دی چې: تام عروج یې کړی وي او کمالات یې هم حاصل کړي وي اود خلکو دخدمت له پاره یې عالم خلق ته تام نزول کړی وي.

د اول تقسیم له مخې دوهم تقسیم چې عبارت و له سالکانو د طریقې د کمال څخه هم په دوه برخو وېشل شوي دي:

۱ ــ هغه کسان دي چې د حق سبحانه وتعالی طالبین ( غوښتونکي ) او محبین دي او یواځې د الله تعالیﷻ د رضا مُریدین ( غوښتونکي ) دي. کما قال الله تعالی: ( وَيُرِيْدُوْنَ وَجْهَهُ ).

۲ ـ هغه کسان دي چې د جنت طالبین اود آخرت مُریدین دي.

او له دې وروسته سالکین د طریقې دکمال کوم چې دخدای تعالیﷻ د رضاد حصول مُریدین دي هغه هم په دوه ډوله دي:

۱ ــ هغه مُتصوفه دي چې خپل ټول اخلاق رذیله بشریه یې تصفیه اوفاني کړي وي، لېکن کاملې تصفیې ته نه وي رسېدلي.

۲ ـ هغه کسان دي چې د الله تعالیﷻ د رضاء د کمال حصول ( د پوره حاصلولو ) مُریدین دي او دوی ته ملامت کوونکي هم وایي. یا په بل عبارت هغو کسانو ته ویل کېږي چې نیمایي تصفیه یې کړې وي او نیمایې تصفیه یې نه وي کړې.

دوی ته ملامت کوونکي له دې وجهې وایي چې: دوی د تل له پاره د ملامتیا په مقام (ځای) کې وي. چې د خپل عبادت له ښکاره کولو څخه په وېره کې وي. لکه دهغه ګنهګار په شان چې دخپلې سرکشۍ (عصیان) له ښکارېدلو څخه وېرېدونکی او په خطر کې وي. همدارنګه ملامت کوونکي له دې وجهې هم ورته وایي چې: ددوی په حق کې ویل شوي دي چې: (هُمُ الَّذِيْنَ لَا يُظْهِرُوْنَ خيراً ولا يُضْمِرُونَ شراً). او له دې وجهې هم ورته ملامت کوونکي وایي چې: ملامتیان د مخلِصینو (په کسرې د لام سره) له جملې څخه دي اودا هغه کسان دي چې عبادت یې اکثره د نفس په تکلف او درونډوالي سره وي او کله کله یې په شوق اوذوق سره کوي او کوم چې صوفیهٔ کرام دي هغه له جملې د مخلَصینو (په فتحه د لام سره) څخه دي اودا هغه کسان دي چې ددوی عبادت د همېش له پاره په ذوق،شوق ، خضوع او عاجزي سره وي. یعنې د دوی عبادت کول دوی ته طبعي او روحي ګرځېدلي وي اود عبادت په کولو کې ورته هېڅ تکلیف او درونډوالی نه محسوسیږي اونه پېښیږي.

نو د مخلَصین (په فتحه د لام سره) له تعریف څخه د مخلِصین (په کسره د لام سره) تعریف هم څرګندیږي اود دوی ترمنځ واضح او ښکاره فرق دی.

له اول تقسیم څخه وروسته د دوهم تقسیم له مخې کوم تقسیم چې د سالکینو د طریقې دکمال دی دهغو دوهم قسم عبارت دی د جنت او آخرت له طالبینو او مُریدینو څخه. لکه څرنګه چې الله تعالی ﷻ فرمایلي دي: ((وَمِنْكُمْ مَنْ يُرِيْدُ الآخِرَةَ ))چې دا قسم خلک په څلورو برخو وېشل شوي دي:

  

## د جنت او اخرت د طالبينو ډولونه

**(۱) زُهاد. (۲) فُقراء. (۳) خُدام. (۴) عباد.**

[۱] **زُهاد:** يو ځل ذوالنون مصري رحمه الله د شام د مُلک په دښتو او اطرافو کې يوه محترمه ښځه وليدله او ورته يې وويل چې: (مِنْ اَيْنَ اَقْبَلْتِ ؟) يعنې له کومه ځايه راغلې ؟ نو هغې ښځې ورته په ځواب کې وويل چې (جِئْتُ مِنْ اَقْوَامٍ تَتَجَافٰى جُنُوْبُهُمْ عَنِ الْمَضَاجِعِ لِعِبَادَةِ اللهِ) يعنې له داسې قوم څخه راغلم چې د خدای ﷻ د عبادت له پاره يې بسترې پرې ايښې وې. يعنې د زاهدانو له ټولې څخه راغلې يم. ذو النون مصري رحمه الله بيا ورڅخه وپوښتل چې: (اَيْنَ تُرِيدِيْنَ ؟) يعنې اوس چېرته اراده د تللو لرې ؟ هغې ورته په ځواب کې وويل چې: (اِلٰى رِجَالٍ لَّا تُلْهِيْهِمْ تِجَارَةٌ وَّلَا بَيْعٌ عَنْ ذِكْرِ اللهِ) داسې خلکو ته ورځم چې تجارت او خريد وفروخت يې د خدای ﷻ له ذکره نه غافله کوي. يعنې د عرفاوو ډلې ته ورځم.

حضرت ذالنون مصري رحمة الله عليه ورته وويل چې: (صِفْهُمْ) يعنې څه اوصاف ددغو خلکو راته بيان کړه! هغې ورته په څواب کې وويل چې: سَير د زاهد هره ورځ د يوې مياشتې سفر کوي او سير د عارف هر ساعت کې تر تخت د شاه پورې سفر کوي. (سير عارف ہر دمی تا تخت بادشاه) يعنې عرفاوو ته په مشاهدې او حضور د حق تعالی ﷻ کې مانع نه وي او پرته له مانع څخه هميشه دهغه په دربار کې وي.

له دې واقعې څخه د زهادو تعريف څرګند شو. اوس راځو د فقراوو، خدام او عبادو تعريف ته چې په لاندې ډول دی:

[۲] **فقراء**: فقراء هغه کسان دي چې: د شيانو له ملکيت څخه يې خپل ځان په دنيا کې لرې ساتلی وي.

[۳] **خدام**: خُدام هغه کسان دي چې هر وخت په خدمت د حق سبحانه وتعالی ﷻ کې له هر شي څخه فاني وي.

[۴] **عباد**: عباد هغه کسان دي چې دوی هم هر وخت په عبادت او رضا د الله تعالی ﷻ کې مصروف وي او له ماسوی الله څخه يې مخ ګرځولی وي.

له دې ټولو تقسيماتو څخه ټول اته قسمونه په لاس راغلل او بايد چې له مخکې څخه يې ياد کړی په دې ځای کې يې اجمالي يادونه وشوه.

له دغو ټولو نومونړو اقسامو سره يوه ډله خلک چې متشبهين ورته وايي هم شته چې له دغو مذکوره اقسامو سره په لباس، افعالو او داسې نورو کې تشبُه لري اودوی هم په دوه ډوله دي:

۱ ــ هغه مُحقين متشبهين دي چې له مذکورو قسمونو سره په لباس، افعالو اونورو شيانو کې په دې نيت تشبُه (يو شی والی) کوي چې په برکت او تشبه ددوی مونږ له جُملې د مذکورينو څخه په تقوی اود خدای ﷻ په رضا کې وشمېرل شو.

۲ ــ هغه مُبطلين متشبهين دي چې خپل لباس او افعال يې ددې غرض له پاره د صوفيه، زهادو او عبادو په طريقه جوړ کړي وي چې د خلکو جلب او توجه ځان ته راوګرځوي او دُنيوي جاه و جلال او نورې ګټې لاس ته راوړي او خپل ځان داسې ښکاره کړي چې ګواکې مونږ حقيقت ته رسېدلي يو اود بزرګۍ مقامات مو طی کړي دي اوپه حقيقت کې دوی د ګندم نما او جو فروش (چې ظاهره غنم ښکاروي او خرڅوي وربشې) مصداق دي. چې دا ډله په حقيقت کې د شريعت ظاهري او باطني بدنامي کوي اود دين غله او غداران دي اود دنيا او جاه و جلال د حاصلولو له پاره يې د

آخرت امور په ځان کې ښکاره کړي وي. او په دې طريقې باندې دُنيا خوري. دا ډله د دنيا له کسب کوونکو څخه بدترينه ډله ده او همدارنګه ددې ډلې مقصود او غايه دا رنګه ښکارېږي چې موږ حق ته وصل شوي يو اود خداى تعالى ﷻ عبادت ته نور حاجت نه لرو. چې ددوى داسې اعمال او خبرې آخر دوى کفر تـه ورنـژدې کوي. الله تعالى ﷻ مو دې ورڅخه وساتي. آمين.

**عالم صغير** : (انسان) عالم صغير هم له لسو شيانو څخه مُرکب دى. پنځه عـالم امـر چـې عبـارت دى لـه : لطيفـۀ قلبـي، روحي، سري، خفي او اخفى څخه. دغو ته عالم امر وايي. ځکه چې د (کُنْ) په امر پيدا شوي او مرکز يې فوق العرش دى. لېکن الله تعالى ﷻ په خپل حکمت سره د عالم امر څه حصه په عالم صغيرکې چې انسان دى پيدا کړې ده. چې دا عالم په اصلِ ذات کې نوراني ده او ميل يې حقيقت وجوبي يعنې کمالاتو ته دى.

او پنځـه اُمـور د عـالم خلـق دي. چـې عبـارت دى لـه : لطيفـۀ خاکي، آبى، هوايي، آتشي او پنځم يې حاصل ددې څلورو شيانو دى چې هغه (نفسِ ناطقه) دى. دغو پنځو اُمورو ته عالم خلق وايي. ځکه چې رب تعالى ﷻ په تدريج سره په شپږو ورځو کې ددوى تخليق کړى دى. اودا عـالم پـه اصـلِ ذات کـې کثيـف او ظُلماني دى او ميل يې دَنائَتْ يعنې نقص او بې کمالي ته دى.

**سوال:** دا دواړه امرونه په خپل منځ کې متضاد دي، نو څرنګه په یوه محل کې له متضادو صفاتو سره جمع کېږي ؟

**ځواب** : دا عالم امر الله تعالیٰ ﷻ په عالم خلق باندې عاشق کړی،نو عالم خلق ځای ورکړی. او څرنګه چې عالم امر یعنې پنځه لطائفې مسافرې دي له دې وجهې عالم خلق په دوی غالب دی او عالم امر هم له ځان سره دنائَتْ یعنې نقص خواته مائل ګرځوي. اوددوی په جمع کولو کې د الله تعالیٰ ﷻ حکمت دادی چې انسان په مجاهده او مقابلې سره بېرته د کمال خواته ترقي وکړي اودا ترقي له عالم خلق سره د عالم امر دمقابلې په نتیجه کې راځي، کوم چې جِهاد اکبر ورته وایي اودا د تل له پاره جاري وي. له دې وجې حضرت نبي کریم ﷺ فرمایي چې : (**اَلْجِهَادُ مَاضٍ اِلٰى يَوْمِ الْقِيَامَةِ**) .



## د طُرقِ اربعه وو ((څلورو طريقو)) مقاصد

اهل الله وو چې کومې څلور طريقې وضع کړې دي ددې لـه پـاره چې په عالم صغير (انسان) کې تزکيه اوتصفيه راشي اوهغـه څلور طريقې په لاندې ډول دي:

۱ ـ نقشبنديه ۲ ـ قادريه ۳ ـ سهرورديه ۴ ـ چُشتيه

چې لـه دې ټولـو څخه مقصد د عـالم خلق تزکيـه اود عـالم امـر تصفيه ده.

## تخلیٰ او تحلیٰ:

د سلوکو علمـاء پـه دوه قـسمه دي: ځينـې علمـاء کـرام تخلـیٰ مقدمـه بـولي چې هغـه تزکيـه د عـالم خلق ده او ځينې نـور علمـاء کرام بيا تحلیٰ مقدمه بولي چې هغه تصفيه د عالم امر ده.

ځوک چې تخلا مقدمـه بـولي هغـه د قـادريې شريفې، چشتيې شريفې او سـهرورديې شريفې حضرات دي. د مثـال پـه توګـه: د امـام شـبلي رحمه الله پـه منـاقبو کـې راغلـي دي چـې: دی لـه بـاطني

کمال نه مخکې د بغداد د بادشاه له طرفه په (نهاوند) مقام کې والي و، يو وخت کې د بغداد پاچا نهاوند ته راغی، کله چې يې دده نيکې کارنامې وليدلې نو امام شبلي رحمة الله عليه ته يې په انعام کې خپله (چوپانه) ورکړه، بل وخت امام شبلي رحمة الله عليه د همدغې چوپانې په لستوني خپله پوزه پاکه کړه، يو څوک د بغداد پاچا ته ورغی اودا شکايت يې ورته وکړو چې د نهاوند والي ستا له هغې چوپانې سره دومره بې ادبي وکړه چې د هغې په لستوني يې پوزه پاکه کړه، بادشاه چې ددې خبرې پوره تحقيق وکړو نو امر يې وکړ چې ورشئ چپنه هم ورځخه واخلئ او له ولايت څخه يې هم معزوله کړئ! امام شبلي رحمة الله عليه له ځان سره فکر وکړ چې: ما د يوه انسان له چپنې سره دومره لږ بې ادبي وکړه نو چپن يې هم راڅخه واخيسته او له ولايت څخه يې هم عزل کړم. دا که څوک د الله تعالى ﷻ له لستوني سره بې ادبي وکړي نو دهغه انسان به څه انجام وي؟. له دې وروسته دی مبارک حضرت جُنيد بغدادي رحمة الله عليه ته ورغی، دهغه مُريد شو او توبه يې واېسته، جُنيد بغدادي رحمة الله عليه دی بېرته هماغه ځای ته له خپلو شېخانو سره ولېږه چې ده پکې ولايت او امامت کړی و او درې کاله يې ورباندې په هماغه ځای کې له نورو شيخانو سره چنده راټوله کړه، ترڅو د شبلي رحمة الله عليه نفس بنه ذليل شي، بيا يې وروسته دوه کاله نور ورباندې په هماغه ځای کې تجارت

وکړ چې له دې وروسته بیا ورځخه (امام شبلي رحمة الله علیه) جوړ شو.

ځینې علماء کرام چې تحلیٰ مقدمه بولي هغه لکه د نقشبندیې سلسلې مسلک دی، د مثال په توګه:

حضرت بابا سماسي رحمة الله علیه په یوه ځای کې په یوه قصر باندې تېرېده نو ده مبارک وویل چې: دا اوس د بُت پرستانو قصر دی، خو په یوه وخت کې به دا (قصرِ عارفان) شي، په همدې وخت کې حضرت شاه نقشبند رحمة الله علیه پیدا شو، نو ده مبارک خپل خلیفه حضرت امیر کلال صاحب رحمة الله علیه ته امر وکړ چې ددغه شخص به داسې تربیه کوې چې که بې غوري دې پکې وکړه نو زما له طرفه به عاق شې. بیا حضرت امیر کُلال رحمة الله علیه حضرت شاه نقشبند رحمة الله علیه داسې تربیه کړ چې د خلافت مرتبې ته یې ورساوه او په همدې ځای کې یې د تصوف دستاربندي وشوه، بیا یې ورته وویل چې: ستا استعداد ډېر لوړ دی، بل ځای ته ولاړ شه او نور کمالات هم حاصل کړه او دا شعر یې ورته ووایه چې: (مرغ روحانیت شما از بیض بشریت شما بیرون آوردم) بیا حضرت شاه نقشبند رحمة الله علیه بغداد ته ولاړ او هلته یې د خلیل عطا صاحب سره شپږ کاله تېر کړل او ځان یې کمال ته ورساوه. د شاه نقشبند رحمة الله علیه څلور خلفاء کرام وو:

١ ــ علاءالدين عطار رحمة الله عليه. ٢ ــ علاؤالدين غجدواني رحمة الله عليه. ٣ ــ محمود فارسا رحمة الله عليه. ٤ ــ يعقوب چرخي رحمة الله عليه.

او حضرت امام رباني مجدد الف ثاني (رحمه الله رحمة واسعة) من وجه تخلي مقدمه بولي او من وجه تحلی مقدمه بولي. من وجه چي تحلی مقدمه بولي. مثال يې په مطلعيت د صباح کې راوړی. يعني له صبح صادق څخه مخکې چې تياره ده دا عبارت له تخلي څخه دی او پس له صبح صادق څخه چې له روشنايي څخه عبارت دی هغې ته تحلی وايي.

## د تزکيې او تصفيې معنا

د عالم خلق اصلاح ته تزکيه ځکه وايي چې: عالم خلق په اصل کې کثيف ظلماني دی نو اصلاح يې په تبدُل د صفت سره چې نوراني کېږي د عالم خلق حلالول دي، ترڅو چې دم مسفوح يعني اخلاق رذيله ورڅخه جَلا شي او د کمال قابل وګرځي.[1]

(١) يوه (تصفيه) ده او بله (تزکيه). تصفيه د عالم امر د کمالاتو له پاره استعماليږي او تزکيه د عالم خلق دکمالاتو له پاره استعماليږي. لکه له حيوان څخه چې دم مسفوحه لرې نه کړې نو نه حلاليږي. همدارنګه د عالم خلق کدورت

او ظلمانیت په آسانۍ سره نه لرې کېږي. هغه طریقې چې اهل الله وو د تصفیې او تزکیې له پاره وضع کړي دي، هغه له نقشبندیې، قادریې، سهروردیې او چشتیې څخه عبارت دي. قادریه، سهروردیه او چشتیه لومړی د عالم خلق په کمالاتو شروع کوي چې کمالات هم ورته وایي او فنا او بقا هم ورته وایي. یعنې دعالم خلق د تزکیې له پاره یې ځینې ریاضیات وضع کړي دي. لکه نفل لمونځونه، روژې، ځلې چې په کلونو کلونو د عالم خلق تصفیه کوي. دا طریقې په دې لار مطلوب ته رسېدلي دي.

د نقشبندیې طریقه په لومړي سر کې د عالم امر په تصفیه باندې شروع کوي او د عالم امر د تصفیې په ترځ کې لومړی د (قلبي) لطیفې، بیا د (روحي) بیا د (سري) بیا د (خفي) او بیا د (اخفی) په تصفیې باندې شروع کوي، چې د دې تصفیې له پاره یې د الله ﷻ د نامه ذکر کول وضع کړي دي. نو چې کله دا ذکر په پوره پابندۍ سره وشي نو د عالم امر تصیفه وریاندې راځي، چې کله یې تصفیه راشي نو ترټولو لومړی په خپلو اصولو کې محو کېږي، یعني خپل مرکز او خپلو اصولو ته رجوع کوي، کوم چې فوق العرش دي، د عالم خلق کدورت ترې لرې کیږي او خپل اصلي وطن ته عروج کوي او پکې محو کېږي. کله چې هلته رجوع وکړي نو بیا یې د حقیقت وجوب له مراتبو سره مناسبت پیدا کېږي، یعني مصفی شي او خپل پخوانی نورانیت ورته پیدا شي، چې په نتیجه کې د اضافي صفاتو د تجلی مستحق وګرځي. بیا یې چې کله کامله فنا او بقا راشي نو د ثمانیه صفاتو (اته ګونو صفاتو) د تجلی محل وګرځي. بیا چې کله تردې هم پورته وخیژي او عروج یې راشي نو بیا د ذاتي شیوناتو د تجلیاتو محل (ځای او منزل) وګرځي او بیا د اعتباراتو تجلیاتو ته وګرځي. یعني بیا د حقیقت وجوب د مراتبو د فیوضاتو محل وګرځي. کوم چې عالم امر دی. نود عالم امر په تصفیې سره فی الجمله تزکیه د عالم خلق راځي. د عالم خلق تزکیه په دېر وخت کې

راخي. خکه چې کثیف، مظلم او مکدر دی، لیکن د نقشبندیې په طریقې کې د عالم امر د تصفیې په ضمن کې د عالم خلق تصفیه هم راځي، له دې وجهې په کم وخت کې د عالم خلق تزکیه هم منځ ته راځي.

حضرت شاه نقشبند صاحب رحمه الله په یوه وخت کې پنځلس شپې پرله پسې په سجده باندې پروت و. غږ ورباندې وشو چې: (چون در آیی) څنګه راځې ؟ یا څه غواړې ؟ ده مبارک ورته وویل چې: (آنچه من خواهم آن شود) یعني زه چې له سجدې سر پورته کړم نو څه چې زه غواړم نو خدایه ته هغه وکړې ! غږ پرې وشو چې: ته خو بنده یې عاجز او عدم یې ! ته څنګه وایې چې: (آنچه من خواهم آن شود) بلکې (آنچه که من خواهم آن شود) بیا څو شپې په سجده باندې پرېووت. چې غږ پرې وشو چې: صحیح ده . (آنچه تو خواهی آن شود) نو سر یې پورته کړ او ویې ویل چې: خدایه ! زه دا غواړم چې زما طریقه مطلوب ته د رسېدلو تر ټولو اسهله (آسانه) اسرعه (تېزه) طریقه وګرځوې ! ترڅو چې یو څوک زر او په آسانۍ سره خپل مطلب ته وصل شي. اول وصل د اضافي صفاتو د تجلیاتو دی، چې کله اضافي صفاتو ته وصل راشي او فنا بقا پکې راشي نوبیا تردې پورته شي او ذاتي صفاتو ته وصل، فنا او بقا راشي، نو هلته عروج وکړي. له دې وروسته یې بیا د ذاتي شیوناتو په تجلیاتو کې فنا او بقا راشي.

یو ذاتي صفات. بل اضافي صفات، بل ذاتي شیونات دي. چې تر ذاتي صفاتو فوق دي . او بل ذاتي اعتبارات دي، چې دا بیا تر ذاتي شیوناتو فوق دي. دا مراتب د وجوب دي. په لومړي خل کې چې کله د سالک له اضافي صفاتو سره وصل راشي نو دې ته (وصلِ مطلق) وايي. او همدارنګه (ظلي ولایت) هم ورته وايي. چې د اُمت له ولایت څخه عبارت دی. سالک چې کله د صفاتو له ظلالو څخه عروج وکړي او فنا بقا یې پوره شي نو اته ګوني صفاتو ته یې عروج وشي. یعنې له اته ګوني صفاتو څخه فیوضات پرې نازلیږي او صفاتِ ثمانیه وو (اته

اودعالم امر اصلاح ته تصفیه څکه وایې چې: هغه په اصل ذات کې نوراني وو. لیکن د عالم خلق صفت پرې غالب شوی وو کوم چې ظلمت دی، نو چې کله بېرته پاک شي نورانیت یې ښکاره شي له دې وجې ددې اصلاح ته تصفیه وایي.

د تزکیې په نومورو څلورو طریقو کې درې طریقې چې عبارت دی له: قادریه، سهروردیه او چُشتیه څخه. دوی لومړی تزکیه د عالم خلق کوي او دا ډېر مشکل کار دی.

څکه چې یو شی له خپل اصلي طبیعت څخه اړول دي، نو له دې وجې دوی ډېر تکلیفونه تېروي، چلې خانې او خلوتونه تېروي، روژې نیسي او ښه خوراکونه هم نه کوي.

**یادونه**: د عالم خلق تزکیه جوګیان اونور غیر مسلم خلک هم کولای شي، اودوی ته هم کشف پیدا کېږي، تردې پورې چې په عالم مُمکن یعنې عالم خلق کې کوم چې تر عرش لاندې دي؛ څه

---

ګوني صفاتو) ته چې ورسیږي نو (ولایت کُبری) ورته حاصل شي. چې د انبیاوو علیهم السلام له ولایت څخه عبارت دی. چې کله له اته ګوني صفاتو څخه ذاتي صفاتو ته عروج وکړي او استعداد یې فوق یا لوړ شي نو بیا یې ذاتي شیوناتو ته عروج کېږي. چې د (ملاء اعلی) یعنې د مُقربو ملائکو له ولایت څخه عبارت دی. له دې عباراتو څخه دا هم څرګنده شوه چې ولایتونه درې دي: یو (ولایت صُغری) بل (ولایتِ کُبری) او بل (ولایتِ عُلیا) چې د ملائکو له ولایت څخه عبارت دی

تصرفات هم کولای شي خو په عالم امر کې کوم چې فوق العرش دي ؛ هېڅ تصرف نه شي کولای. له دې وجې الله تعالی ﷻ اهل الله په دوی باندې غالب کړي دي. لکه د خلیفه صاحب سید امیر صاحب قدس الله سره او یوه جوګي په واقعه کې راځي:

خلیفه صاحب مبارک ویل چې: په هندوستان کې یو مشهور جوګی پنځوس کاله په یوه ځای ناست و او د عالم خلق تزکیه یې کوله او څه تصرفات یې هم درلودل. کله چې زه هلته (سرهند) شریف ته ولاړم، نو دغه جوګي له ماسره سخته مقابله شروع کړه. تردې پورې چې زما د متاثره کولو له پاره به یې راته ځینې ماران او اور هم ښکاره کول. زه دده تصرفاتو ته حیران وم، خو ما چې کله د حضراتو مبارکانو رابطه ونیوله،نو دی عاجزه شو، تردې پورې چې له خولې ځخه یې چیغه ووته او په هماغه ځای کې مُردار شو. دا ځکه چې دوی له عالم مُمکن ځخه پورته نه شي تللی او له درې ګونو تجلیاتو چې: له تجلیات د صفاتو، تجلیات د شیوناتو او تجلیات د اعتباراتو عبارت دی ؛ دوی بدبختان محروم دي. نو له دې وجې اهل الله وربانديې غالبیږي.

غرض داچې دا نورې طریقې لومړی تزکیه د عالم خلق کوي، کوم چې دېر مشکل کار دی اوبیا وروسته تصفیه د عالم امر چې ښخه لطائفې دي ؛ کوي. اوپه نقشبندیه طریقه کې لومړی تصفیه د عالم امر شروع کېږي اوپه عالم امر کې تر ټولو مخکې تصفیه د

لطيفهٔ قلبي راولي كوم چې د ټولو اساس او بُنياد دی. قلب (زړه) د انسان د ټولو اعضاوو رئيس او سردار دی. کله چې قلب صفا شي نور ټول اندامونه په آسانۍ سره اصلاح کېږي، لکه څرنګه چې په حديث شريف کې راځي چې: «اَلاَ اِنَّ فی الجسدِ مُضغةً اِذا صَلُحَتْ صَلحَ الجسدُ کلهُ وَاِذا فَسدتْ فَسدَ الجسد کله اَلاَ وَهِی القَلْبُ» [بخاری\ج۱\ ص۱۳].يعني خبردار! په بدن کې يوه ټکړه ده چې کله هغه صالحه شي نو ټول بدن صالح شي او که هغه فاسده شي نو ټول بدن فاسد شي. خبردار! هغه ټکړه زړه ده. نو له دې حديث شريف څخه معلوميږي چې انسان ته په کار دي چې د زړه په اصلاح کې ډېر کوشش وکړي، چې کله زړه اصلاح شي نو بيا دغه اصلاح شوي زړه ته په شريعت کې (قلبِ سليم) وايي. او په آخرت کې کاميابي هم په دغه قلبِ سليم سره راځي. څکه الله تعالیٰ ﷻ فرمايي: «يَوْمَ لاَ يَنفَعُ مَالٌ وَلاَ بَنُونَ ۸۸ إِلاَّ مَنْ أَتَى اللهَ بِقَلْبٍ سَلِيمٍ ۸۹» [سورة الشعراء].

## د لطـائفو بيـان

په نقشبنديه طريقه کې لومړی د (لطيفهٔ قلبي) تصفيه راځي، بيا د (لطيفهٔ روحي) بيا د (سرِي) بيـا د (خفِي) بيـا د (أخْفی) په واسطه د ذِکر د اسم ذات سره چې (اَللّٰهُ) دی

پـه دې کـې څـه حکمـت دی چـې دانسـان د بـدن پـه دغـو پنځـو ځايونو کې الله تعالیٰ ﷻ همدغه شپږ لطائف مقرر (ټاکلي) دي ؟ چې هغه : لطيفهٔ قلبي، لطيفهٔ روحي، لطيفهٔ سرِي، لطيفه خفي، لطيفهٔ اخفی او ذکرِ سُلطان دی.

**١ ــ لطيفهٔ قـلبي**: د انسان له چپ تي څخه درې ګوتې لاندې دغه زړه محل دلطيفهٔ قلبي دی، بل دغه زړه محل د نظر د خدای تعـالیٰ ﷻ دی، محـل د الهـام د ملائکـو دی او محـل د وسوسـو دشيطان دی. په حديث شريف کې راځي چې: د انسـان پـه زړه کـې دوه کوټې دي، يوه د ملائکو د اوسېدو له پاره ده او بلـه د شيطان د وسوسو ځای دی، خو کله چې انسان د الله تعالیٰ ﷻ له ذکر څخه غافله شي نو د انسـان پـه زړه کـې شيطان مـښوکه ښـکته کړي او وسوسې وراچول شروع کړي اود الله تعالیٰ ﷻ لـه عِبـادت څخـه يې

محروم کړي. خو کله چې انسان بېرته په ذکر شروع وکړي دغه د ذکر ځايونه يو ځانګړی نور لري. لکه موږ چې له اور څخه منډې وهو نو دغه بدبخته شيطان له نور څخه منډې وهي او په تېښته وي او له ټول وجود څخه ووزي، چې له دې سره انسان د الله تعالیٰ ﷻ ذکر او عبادت ته متوجه شي.

د زړه ښه صفات زينت، معرفت اود خدای تعالیٰ ﷻ محبت او عشق دی. د مثال په توګه: له يوه ولي الله څخه چا پوښتنه وکړه چې: (**مَا معنى للاسلام ؟**) ده په خواب کې ورته وويل چې: (**أمَا تدرونَ في الاسلام ؟**) هغو په خواب کې ورته وويل چې: (**بَل اطلب منكَ الوضاحة**) ولي الله ورته په خواب کې وويل چې: د اسلام معنا (**العشق والمحبة في قلب المؤمن**).

اود زړه رزيله صفات لکه: حسد، غلظت، تکبر، حرص، بغض، خو کله چې انسان په زړه کې ذکر شروع کړي، نو ددغه ذکر په برکت سره يې په زړه کې الهي معرفت پيدا کېږي، بيا هغه بد صفات له زړه څخه وځي اودهغه په مقابل کې دخدای تعالیٰ ﷻ محبت اود حضرت رسول الله ﷺ محبت اود نېکو خلکو سره محبت پيدا کېږي. بيا د کِبر په ځای حِلم اوبُرده باري پيدا کېږي، ډېر برده باره شي، يعنې که يوڅوک ورسره زياتی کوي ظلم ورباندې کوي دی ورڅخه انتقام نه اخلي او عفوه ورته کوي. او

ددې مبارک حديث مصداق ګرځي چې: ﴿صِلْ مَنْ قَطَعَكَ وَاعْفُ عَمَنْ ظَلَمَكَ وَاَحْسِنْ اِلَى مَنْ اَسَاءَ اِلَيكَ﴾. همدارنګه د حرص په ځای بيا قناعت پيدا کېږي، چې بيا په ډېر کم شي او رزق باندې هم خپله ګذاره کوي اود الله تعالی ﷻ شُکر ادا کوي.

نو په دې کې دغه الهي حکمت دی چې کله دغه زړه د لطيفهٔ قلبي په واسطه په ذکر مشغول شو نو دومره حکمتونه او دومره نعمتونه په لاس راغلل، او مُريد ددغسې يو حالت توقع او التجاء لري. اودی ددغه آيت مبارک مصداق وګرځي چې: ﴿فَاذْكُرُوْنِيْ اَذْكُرْكُمْ﴾.

## دوهمه لطيفې ﴿روح﴾ ده :

ددې محل د انسان معده ده يعنې جيګر او يېنه ده. دا لطيفه دانسان د ښي تي څخه دوه ګوتې لاندې لـه ينې سره ده. دا د صفاتِ متضاده وو محل ده. په دغه جيګر کې صفرا، سودا دواړه شته، داځای محل د سرور او خوشحالی او محل د صحبت او رحمت دی. خو کله چې دانسان دغه جيګر د الله تعالی ﷻ په ذکر لګيا شي نو هغه بېکاره صفات چې صفرا او سودا ده هغه ليرې شي ، بيا دغه جيګر ﴿ينه﴾ محل د رحمت ، محل د سرور، محل د برکت ګرځي. يعنې دخدای پاک ﷻ په دين باندې خوشالي کوي.

او کله چې د الله تعالی ﷻ په دین باندې او مسلمانانو باندې تکلیف وي نو دی په دغه حالت کې خفه کېږي او پرېشانه وي. اودغه آیت شریف ته یې توقع او التجاء وي: (اِنْ كُنْتُمْ تُحِبُّونَ اللّٰهَ فَاتَّبِعُوْنِيْ يُحْبِبْكُمُ اللّٰهُ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوْبَكُمْ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ).

## دریمه لطیفه (سری) ده:

ددې لطیفې محل د ښي تي څخه دوه ګوتې پورته دی، په دغه برابري باندې د انسان توری دی. دا توری محل د لطیفۀ سري دی، خو دا توری محل د مشاهدې دی. که تصفیه یې وشي د خدای تعالی ﷻ نور پکې لیدل کېږي. اودا توری محل د خوشحالي دی، محل د خندا دی. محل د غرور دی، محل د ژړا دی، او محل د ندامت او تواضع دی. متضاد صفات لري، کله چې دا ځای یعني توری د خدای تعالی ﷻ په ذکر لګیا شي، نوذکر په برکت سره هغه رزیله او بېکاره صفات لکه بې ځایه خندا، غرور او داسې نور شیان له منځه ځي. او انسان په دغه ځای کې په دیني امورو خوشالي کوي، بیا دغه محل د انوارو او تجلیاتو کېدای شي. بیا د خندا په ځای ژړا پیدا کېږي، دغرور په ځای تواضع اود خوشالي او بې ځایه خنداګانو په ځای ندامت ورته پیدا کېږي.او کله چې الهي معرفت ورته حاصل شي او هغه ویني نو په خپلو ګناهونو تائب شي. او خپلو تقصیراتو ته متوجه

شي. اودا وايي چې الله تعالیٰ ﷻ په مونږ ډېر زيات فضل او کرم کړی دی. کنه دا انوار خو زما د ګناهونو په سبب بند شوي وو. بيا انسان خپلو ګناهونو ته متوجه شي. او بيا توبې وباسي او دغه شعر يې ذهن راځي:

صَرَفْتُ العُمْرَ فِي لهوٍ وَلَعِبٍ　　فـــآهٍ ثــم آهٍ ثــم آهٍ

او لـه دې سـره يـې دغـه آيـت کريمـه تـه ټولـه توجـه او التجـاء راګرځي چې: ﴿ أُدْعُوْا رَبَّكُمْ تَضَرُّعًا وَّ خُفْيَةً ﴾.

## څلورمه لطيفه ( خفي ) ده :

ددغې لطيفې محل د چپ تي څخه دوه ګوتې پورتـه دی. دغلتـه د انسان تريخی دی. دغه د لطيفۀ ( خفي ) محل دی. خو دا تريخی د انسان محل دغم، ډار، غضب، غلظت ( کلک توب ) او محـل د ژړا دی. خو کله چې دغه د انسان تريخی د خدای تعالیٰ ﷻ په ذکر لګيا شو، نو د غضب په ځای باندې د خدای ﷻ وېره ورسره پيدا کېږي او نـور رذيلـه اخلاق دا ټول ورڅخـه بيـا ولاړ شـي، نـو بيـا غمجن وي، بيا د الله تعالیٰ ﷻ لـه غـضب څخه ډېر په ډار او وېره کې وي، بيـا پـه خپلـو ذميمـه (بدو) اخلاقـو لـه الله تعـالیٰ ﷻ څخـه معافي غواړي او په خپلو کړيو بدو عملونو پښېمانه او نادم وي. او پـه خپـل تيـر شـوي ژونـد افسوس او ارمـان او الله تعـالیٰ ﷻ تـه

فرياد او ژړاګانې کوي. چې الله تعالىﷻ به دا ګناهونه راته څرنګه وبښي ؟ نو دغه آيت شريف ته يې توجه او التجاء او اميد وي چې: ( وَاعْبُدْ رَبَّكَ حَتَّىٰ يَأْتِيَكَ الْيَقِينُ ).

## پنځمه لطيفه ( اخفى ) ده :

ددغې لطيفې محل د دوو تيونو منځ دى، يعنې د سينې په هډوکو کې دغه لطيفه ده. په دغه ځاى کې د انسان پښتورګى ( بډوډى ) چې يو چپ طرف او بل ښي طرف ته موقعيت لري. ددغه ذکر محل هغه بډوډى دى. دغه بډوډى محل د انسان د شهوت، جرئت او محل دشجاعت او حرص دى. کله چې انسان د الله پاکﷻ په ذکر باندې دغه بډوډى لګيا کړي نو ددغه ذکر په واسطه خداى پاکﷻ له انسان څخه هغه بېکاره صفات، لکه بې ځايه شهوت، د انسان په قتل جرئت ، اوپه بدو ردو ويلو او بې عزته کولو د انسان اوپه حرص دنيوي، نودغه بېکاره صفات د انسان له بډوډي څخه وځي. کله چې دا ذکر حاصل شي نو په انسان کې د حرص په ځاى قناعت، پيدا کېږي اونور ټول صفات يې دالله تعالىﷻ طرف ته متوجه کوي، لکه د صحابۀ کرامو﷡ په شان يې اخلاق برابر او ددې آيت مباركه مصداق شي : (أَشِدَّاءُ عَلَى الْكُفَّارِ رُحَمَاءُ بَيْنَهُمْ).

بيا يې دغه لاندې آيت شريف ته توجه او التجاء کېږي: ﴿هُوَ الَّذِيْ اَرْسَلَ رَسُوْلَهٗ بِالْهُدٰى وَ دِيْنِ الْحَقِّ لِيُظْهِرَهٗ عَلَى الدِّيْنِ كُلِّهٖ وَ كَفٰى بِاللّٰهِ شَهِيْدًا﴾

## شپږم ذکر سلطان ( ذکر نفسي / ذکر قالبي ) ده :

ذکرِ قالبي يې ځکه بولي چې: د ټولو اندامونو ذکر جاري کېږي. ذکر نفسي يې ځکه بولي چې: په اوله مرحله کې نفس همدلته وي. او ذکر سلطان يې ځکه بولي چې: د ټول وجود ذکر په همدغه سره کېږي. ددې محل د تندي ( ټنډې ) له بېخ څخه د ککرۍ تر آخره پورې دی. خودغه انسان چې ټول وجود يې په ذکر لګيا شي نو ددغه ذکر په برکت سره هغه سرکشه نفس اصلاح کېږي. مثلاً حضرت داود ﷺ ته الله تبارک وتعالی ﷻ فرمايي: ( ته له خپل نفس سره دښمني کوه ځکه چې هغه له ماسره دښمني کوي. ) يعنې له ماڅخه سرکشه دی. نو جهاد له خپل نفس سره فرض عين دی. دې جهاد ته جهاد اکبر ويل کېږي. نفس هميشه کوشش کوي چې انسان په خواهشاتو اخته کړي اوپه ګناهونو يې ګرفتار کړي او انسان د الله تعالی ﷻ له ذکر اود هغه له مبارک دين څخه غافله کړي. ددغه نفس مقابله د خدای پاک ﷻ په طاعت سره راځي، خودغه نفس چې کله يې بيا تزکيه وشي او اصلاح شي نو بيا همدغه نفس په خپله انسان ته د نېکو کارونو امر کوي

او ددې حديث شريف مصداق ګرځي: ( خِيَارُكُمْ فِي الجَاهِلِيَّةِ خِيَارُكُمْ فِي الإِسْلَامِ ) .

اوكله چې د عالم امر تصفيه وشي نو عالم امر په عالم خلق باندې ډېرته غالب شي، نو په ضمن كې يې د عالم خلق تزكيه هم له رياضاتو او تكاليفو پرته لاس ته راځي. او دا ټول د حضرت شاه نقشبند رحمه الله عليه په بركت سره. لكه څرنګه چې دده مبارك په يوه واقعه كې راځي چې: دى مبارك يو وخت تقريباً پنځلس ورځې په سجده باندې پروت و. الهام ورته وشو چې: ( چون در آئى ) يعني څنګه راځې ؟ يا څه غواړې ؟ ده مبارك وويل چې: ( آنچه من خواہم آن شود ) يعني زه چې څه غواړم هغه دې وشي. بيا الهام ورته وشو چې: ته خو بنده يې ! عاجز يې ! ( آنچه من خواهم آن شود ) يعني : نه ! چې زه څه غواړم هغه به كېږي. بيا دى مبارك څو شپې په سجده پرېووت. بيا الهام ورته وشو چې: ( آنچه تو خواهى آن شود ) يعني خپل سر پورته كړه چې ته څه غواړې هغه دې وشي. ده مبارك سر راپورته كړو او ويې ويل چې: زه هغه طريقه غواړم چې مطلوب ته د رسېدو له پاره تر ټولو اسهله او اسرعه وي. نو څكه دې طريقې ته ( مُندرِجُ النهاية فى البداية ) ويل كېږي. يعني چې

د نورو طریقو په آخر کې کوم کمالات پیدا کېږي هغه کمالات د نقشبندي طریقې په اول کې پیدا کېږي.

لهذا که یو څوک د نقشبندي په طریقه کې په صحیح توګه د یوې لطیفۀ قلبي تصفیه راولي نو دی به له ولایت څخه خالي نه وي اود ولایت څه حصه به خامخا ورسره وي.

غرض داچې عالم صغیر چې انسان دی د لسو امورو څخه مُرکب دی. پنځه د عالمِ امر چې (لطائف خمسه) دي او پنځه د عالمِ خلق چې څلور (عناصر اربعه) او یو (نفسِ ناطقه) دی.

**سوال**: که څوک ووایي چې: په انسان کې دوه قوتونه نور هم شته چې: یو عقل او بل خیال دی، نو دا دواړه یې ولې په حقیقت د انسان کې معتبر نه کړل؟

**ځواب**: حضرت مجدد صاحب قدس الله سِره وایي چې: دا ځکه چې عقل په نفس کې مندرج دی، ځکه چې په نفس کې دی او یو غزیري قوت دی، مستقل جزء نه دی او کوم چې قوت خیال دی نو داهم مستقل جزء نه دی. ددې قوې په سبب سره دنورو اجزاوو مثلاً په لطیفۀ قلبي، روحي، سِري، خفي او اخفی همدارنګه په لطیفۀ خاکي، آبی، هوایي، اَتشي پورې چې کوم کمالات مرتب دي دهغو امتیاز پرې کېږي. نو خیالي قوه په خپله کوم کمال نه لري. یواځې د نورو کمال پرې معلومېږي. نو خیالي

قوه چې دی موجود دی خو موهوم نَما. بر عکس د سراب چې هغه موهوم دی خو موجود نَما .له دې وجې دا مقوله بالکل پرې صادقه ده چې (**لولاَ الخيالُ لستَرَ الحالُ**) يعنې که خيال نه وای نو حال به پټ وای . اود امقوله چې (**لولاَ الخيالُ لبطل الحالُ**) يعنې که چېرته خيال نه وای نو حال به باطل وای ؛ کاذبه ده. ځکه چې مجانين (ليونيان) او مجذوبين د خيال قوه نه لري اود حال علم لري. اما په عالم صغير کې چې انسان دی دا قوهٔ خيالي د عَالَم مثال نمونه ده په عالَم کبير کې. نو ځکه د هرچا چې خيالي قوه له عَالَم مثال سره زيات ارتباط او تعلق ولري نو هغوی ته کشف هم زيات وي اود چا چې له عالَم مثال سره تعلق او مناسبت نه وي نو هغو ته کشف هم نه کېږي.

**عَالَـمِ اصغـر** : عالمِ اصغر لـه قلب (زړه) د انسان څخه عبارت دی. د انسان زړه د عرش مثال لري. لکه عرش چې په عالم کبير کې د عالم امر چې ما فوق العرش دی او عالم خلق چې تحت العرش دی ؛ ترمنځ برزخ دی. همدارنګه د انسان قلب هم په عَالَمِ صغير کې د عـالَمِ امر چې پنځه لطيفې دي او عَالَمِ خلق چې څلور عناصر او يو نفسِ ناطقه دی ؛ ترمنځ برزخ دی. لېکن دعرش برزخيت د عالم کبير په اجزاء کې په حقيقي معنا سره ده. لـه دې وجې عالم امر تر عرش پورتـه دی او عـالم خلق تر عرش لاندې دی. او د قلب برزخيت په معنا مجازي سره ده، ځکه چې

دعالم صغیر چې انسان دی اجزاء ټول سره مختلط (ګډوډ) دي او داسې نه دي چې له قلب نه پورته عالم امر دی او له قلب نه لاندې عالم خلق دی. امّا د قلب برزخیت په دې معنا سره چې په رَسولو د فیوضاتو کې واسطه ده، یعنې د انسان زړه له وجوبي حقائقو لکه اضافي صفاتو، ذاتي صفاتو او ذاتي شیوناتو د حق سبحانه وتعالی ﷻ څخه او له عالم امر څخه فیوضات رانیسي او بیا دا فیوضات د بدن نورو اجزاوو ته چې له څلورو عناصرو څخه عبارت دی؛ رسوي. دا ځکه چې قلب ذوجهتین دی. په یوه جهت باندې له عالم امر سره مناسبت لري، ځکه چې دی د لطیفهٔ قلبي ظرف دی او لطیفهٔ قلبي حال دی او قلب کوم چې جسم صنوبري لري محل دی. او له عالم امر څخه لومړی د فیوضاتو اخذ چې کوي هغه لطیفهٔ قلبي ده، ځکه چې لطیفهٔ قلبي هم په اصلِ ذات کې نوراني او له عالم امر څخه ده. او کله چې لطیفهٔ قلبي فیوضات راونیسي نو قلب هم چې د فیوضاتو محل دی له وجې د علاقې د ظرفیت او مظروفیت مُنَوّر شي. او همدا قلب په بل جهت کې له عناصرو اربعه وو سره مناسب لري، کوم چې هغه ذاتي اشتراک دی، ځکه چې قلب په خپله هم له عالم خلق څخه دی نو په دې جهت سره بیا د انسان نورو اجزاوو ته انوار رسوي. له دې وجې د انسان قلب په معنا مجازي سره برزخ دی.

حاصل داچې عـالم صـغير چې انسان دی لـه لـسو امـورو څخـه مرکب دی: پنځه عالم امر او پنځه عالم خلق. او ددې لسو اجزاوو کمالات په قوۀ خيالي سره معلوميږي . يعنې چې د عـالم امر پـه تصفيې اود عالم خلق په تزکيې باندې کوم کمالات مرتب کيږي د هغو تميز په قوۀ خيالي سره کيږي.

الله أكبر

# د څلورو طریقو کمالات

نو ددې څلورو طریقو په وسیله په انسان کې لاندیني کمالات راځي:

**(۱) ولایت صُغری.**

**(۲) ولایت کُبری.**

**(۳) ولایت عُلیا.**

**ولایت صُغری:** د اهل الله وو ولایت دی. او ولایت کُبری: د انبیاوو علیهم السلام ولایت دی. او ولایت عُلیا: د ملاء اعلی وو (ملائکه وو) ولایت دی.

او ددې ولایت دحصول طریقه داده چې: کله د انسان په اجزاوو کې په ذکر د الله سره د عالم امر تصفیه راشي او فناء او بقا ته ورسیږي نو نتیجه یې ولایت صُغری ده، کومه چې د اولیاوو ولایت دی.

# فناء او بقاء

**فناء**: دې ته وايي چې: ټول ماسوی الله پرېږدي او شاته يې وغورځوي. يعنې نفساني خواهشات، د دُنيا حُب، د جَاه حُب اود ټولو مادياتو حُب پرېږدي اود الله تعالیٰ ﷻ حُب پرې غالب شي او توجه يې د آخرت خوا ته شي او د هرې لطيفې همدا فناء ده.

**بقاء**: دې ته وايي چې وروسته له فناء څخه کوم تجليات ورته پيدا کېږي لکه د اضافي صفاتو تجليات يا د ذاتي صفاتو تجليات يا د ذاتي شيوناتو تجليات يا د رب تعالیٰ د ذات اقدس بِلا کيفه تجليات. نو دی په همدغو تجلياتو ککړ شي. يعنې دغه تجليات او انوار په ده کې ځای ونيسي او دی پرې مُتَصف شي. نو د عالم امر په تصفيې فناء او بقاء سره انسان ته ولايت صُغری حاصلېږي، کوم چې ولايت د اهل الله وو دی او ددوی مستقره مقام لومړی د صفاتو ظِلال دی او دې کيفيت ته چې لطيفه يا سالک ورسيږي. يعنې چې سالک کله د اضافي صفاتو تجلياتو ته ورسيږي نو بيا دې ته (وصلِ مُطلق) وايي او بيا يې چې کله ذاتي صفاتو، ذاتي شيوناتو او ذاتي اعتبارياتو ته عروج وشي نو دې ته هم (وصلِ مطلق) وايي. او بيا يې چې کله ذات بحت ته

عروج وشي. يعني د باري تعالى د ذات بحت تجليات پرې نازل شي نو دې ته بيا (وصلِ عُرْيان) وايي. يا په بل عبارت د خالق او مخلوق ترمنځ اويازره حِجابه (پردې) دي، چې ځينې ظلماني او ځينې يې نوراني دي، د هرې لطيفې په تصفيې سره لس زره حجابه له منځه ځي. يعني په (قلبي) (روحي) (سِري) (خفي) او (اخفى) لطائفو سره پنځوس زره حِجابه له منځه ځي او په قالب يعني (ذِكر سُلطان) او (لطيفهٔ نفسي) سره لس لس زره نور حجابات له منځه ځي او په نتيجه کې يې سالک خپل مقصود ته رسيږي. اوپه بله اصطلاح باندې دغو پنځو لطائفو او ذکرِ سلطان او لطيفهٔ نفسي ته اووه ګامه هم وايي .يعني (وصلِ عُريان) ته سالک په اووه ګامونو سره رسيږي.

دا نعمتِ عظمى چې لـه (وصلِ عريان) څخه عبارت دى انبياوو(علَيهم السلام) او کاملو اهل الله وو تـه د ظلماني حجاباتو (چې عالم ممکن دى) او لـه نوراني حجاباتو (چې د اضافي صفاتو تجليات، دذاتي صفاتو تجليات ، د ذاتي شيوناتو تجليات اود ذاتي اعتبارياتو تجليات) لـه لرې کېدو څخه وروسته پيدا کېږي. يعني دا ټول حجابات چې کله لرې شي نو (وصل) راځي، چې د پښتو يوه مصرۍ هم دلتـه ورسره تطبيق کېږي:

مصرۍ :

**ګوردې په شنو ونو کې پټ ده**

**مړوند را هسك کړه د شنو ونو له سرونو**

خو د حجاباتو له لرې کېدو وروسته هم د الله تعالی ﷻ له مشاهدې څخه څه مانع شته چې هغه زمونږ داستعداد کمزوري ده. مثلاً زمونږ اود لمر ترمنځ حجاب نشته خو بیا هم مونږ د لمر قرص (سترګه) یا ټیکی نه شو صحیح کولای. ځکه چې زمونږ سترګې برېښې او کمزورې دي او کامل مناسبت مو ترمنځ نشته. لیکن د ظلماني او نوراني حجاباتو له لرې کېدو وروسته د خپل پیغمبر ﷺ په متابعت اود کاملو اهل الله په توجه سره استعداد قوي کېږي او الله تعالی ﷻ خپل (وصلِ عریان) سالک ته ور نصیب کوي.

مطلب دا چې د عالم امر په تصفیې سره چې پنځه لطیفې دي ولایت صُغری مرتب کېږي، کوم چې ولایت د اهل الله وو دی او د دوی د فیض مبدء په ابتداء کې ظِل د صفاتو دی او په انتهاء کې عین صفاتو ته رسیږي.

او په تزکیه د عالم خلق سره چې په واسطه د ذِکر الهي سره چې څه مرتب کېږي د هغه تفصیل په لاندې ډول دی:

په تزکیه د لطیفهٔ نفسي سره چې خُلص او شیره د عناصرِ اربعه وو دی؛ ولایت کُبری مرتب کېږي، کوم چې ولایت د انبیاوو (علیهم

السلام) دی. یعنې چې د لطیفهٔ نفسي تزکیه راشي، فناء او بقاء حاصله شي او خپل مشرب ته ورسیږي نو ثمره او نتیجه يې ولایت کُبری ده، کوم چې له ولایت صُغری څخه فوق دی. لکه حضرت نبي کریمﷺ په خپل مبارک ارشاد کې فرمایي چې: (خِیارُکُمْ فِی الجاهلیةِ خِیارُکُمْ فِی الاسلامِ إذا فَقِهُوا).

یعنې دا نفس ناطقه په جاهلیت کې چې د انسان تزکیه او تصفیه نه وه راغلي هم سردار و او عالم امر يې د ځان تابع ګرځولی و او دی يې دنائت او پستی ته مائل کړی و، لیکن کله چې د انسان تزکیه او تصفیه راغله بیا هم دی (نفس ناطقه) سردار دی، څکه چې دده په تزکیې سره ولایت کُبری مرتب کیږي چې د انبیاوو ولایت دی. او له ولایت صُغری څخه ډېر فوق دی، کوم چې د عالم امر په تصفیې سره انسان ته مرتب کیږي او (خِیارُکُمْ فِی الجاهلیةِ خِیارُکُمْ فِی الاسلامِ إذا فَقِهُوا) پرې صادقیږي.

## یادونه :

غیرِ اسلامي فرقې لکه: براهمیه، جوګیان اوداسې نور که هر څومره ریاضتونه وکړي نو دوی ته د نفسِ ناطقه تصفیه نه حاصلیږي او نه يې کولای شي. څکه چې دوی ته د وجوبي حقایقو او د اضافي صفاتو، ذاتي صفاتو او ذاتي شیوناتو نورانیت نه

شي حاصلېدای، لېکن د عالمِ امر تصفیه کولای شي، نو څکه په عالم مُمکن کې ځینې کشفیات او تصرفات هم ورته حاصلیږي.

نو د نفسِ ناطقه په تزکیې سره ولایتِ کُبری مرتب کېږي، کوم چې د انبیاوو ولایت دی او د دوی د فیض مبدء او مستقره مقام د حق سبحانه وتعالی ﷻ اسمِ ظاهر دی. یعنې د انبیاوو علیهم السلام د فیض مبدء او مشرب د الله تعالی ﷻ ذاتي صفات دي او د امتیانو یې د باري تعالی ﷻ د اضافي صفاتو ظلال دي، خو بیا له ابتداء څخه وروسته دواړه عروج کوي آن تر بِلا کیفه قرب د الله تعالی ﷻ پورې.

الله أكبر

# د عناصرِ ثلاثه وو تزکیه

د عناصرِ ثلاثه وو ؛ چې له آبي، هوايي او آتشي څخه عبارت دی په تزکيه باندې له فناء او بقاء څخه وروسته ولايت عُليا مرتب کيږي چې د ملاء الاعلی (ملائکه وو) ولايت دی. يا په بله اصطلاح عَالَمِ غيب او عَالَمِ ارواح ته ملکوت وايي، د صفاتو مقام ته جبروت وايي اود شيوناتو مقام ته لاهوت وايي اود اعتباراتومقام ته لاهوت او باهوت وايي. د نقشبنديه وو په اصطلاح کې چې کله څوک اضافي صفاتو ته ورسيږي نو ولايت صُغری پرې مرتب کېږي او چې ذاتي صفاتو ته ورسيږي نو ولايتِ کُبری پرې مرتب کېږي او شيوناتو او اعتباراتو ته چې ورسيږي نو ولايت عُلياء پرې مرتب کېږي. نو دا درې لطيفې يعنې آبي، هوايي او آتشي چې تزکيه شي او خپل مشرب ته ورسيږي نو د ملاء الاعلی ولايت پرې مرتب کېږي، کوم چې ولايت عُلياء هم ورته وايي. او ددغو دريو لطيفو چې ذکر شول مشرب اسمِ باطن دی او اسم باطن عبارت دی د صفاتو له شيوناتو څخه چې له صفاتو څخه فوق دي او ذات هم ورسره ملحوظ وي.

## لطيفۀ خاکي:

د لطيفۀ خاکي په تزکيه باندې چې کله کامله فناء (نسيان د ماسوی الله) او بقاء (رنګېدل په تجلياتو باندې) ورته حاصله شي نو په دغې تزکيې باندې کمالات د نبوت مرتب دي. د ولايت کمالات د نبوت کمالاتو ته داسې نظير لري لکه يو څاڅکی د درياب په مخکې. نو چې کله دخاکي لطيفې په تزکيې سره د نبوت کمالات حاصل شي نو دا انسان تر ملائکو هم افضل شي، ځکه چې ملائکې خاکي لطيفه نه لري، نو ځکه دا ويل شوي دي چې د انسانانو خواص د ملائکو تر خواصو افضل دي، اود انسانانو عوام د ملائکو تر عوامو افضل دي. لکه څرنګه چې الله تعالی ﷻ امتِ محمدي ﷺ ته خطاب کوي: (كُنتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ) [الاية \ سورة البقرة]. يعنې تاسو بهترين د امتونو ياست!. او ملائکې هم يو امت او يو جماعت بلل کېږي.

يو سالک وايي:

زمین زاده تاآسمان تاختہ　　　زمان وزمین پس انداختہ

يعني له خاورو پيدا انسان چې کله د نبوت کمالاتو ته ورسيږي نو په کمالاتو د انبياوو مشرف شي او انبياء عليهم السلام تر هر چا بهتر دي.

**يادونه**:

يو د نبوت منصب دی کوم چې د نبي کميس دی چې بل هېڅوک ورسره پکې نه ځايېږي، بلکې د کميس لمن ته يې هم څوک نه شي رسېدلی. او يو د نبوت کمالات دي کوم چې اهل الله وو ته د حضرت نبي کريمﷺ په کامل متابعت سره حاصلېدلی شي.

دا وو د انسان د لسو اجزاوو کمالات چې په تصفيه د عالَمِ امر سره ولايت صُغری او په تزکيه د نفسِ ناطقه سره ولايت کُبری او په تزکيه د آبي، هوايي او آتشي لطايفو سره ولايت عُلياء او په تزکيه د خاکي لطيفې سره د نبوت کمالات ورته حاصلېږي.

**يادونه**:

د انسان دا لس اجزاء په اصلِ ذات کې يو له بل سره مخالف دي. مثلاً اوبه، هوا، اور او خاوره يو له بل سره مختلف طبيعتونه لري. همدارنګه د عالَمِ امر اجزاء هم يو له بله مختلف دي، ځکه يو له بله فوق دي. مثلاً اول قلبي، دوهم روحي، دريم سِري،

څلورم خفي او پنځم آخفى. خو دغو ټولو اجزاوو ته يو وحداني هيئت ور اغوستل شوى دى، چې بيا دا وحداني هيئت په دوه ډوله دى. يو هيئت وحداني صوري او بل هيئت وحداني حقيقي. [۱] يعنې له تصفيې اوتزکيې نه چې مخکې کوم وحداني هيئت

[۱] اوس هيئت وحداني چې د حضرتِ انسان دلطائفو له کسور څخه عبارت دى او مخکې له تصفيې څخه هيئت وحداني صوري لري. لکه د سکنجبين او معجون اجزاوې چې سره ګډې شي نو هيئت وحداني صوري لري، چې کله په عسلو کې خميره شي نو بيا حقيقي وحدانيت غوره کوي نو په دې وخت کې فائده پرې مرتبه شي. نو دانسان عشره اجزاوې هم له تصفيې څخه مخکې هيئت وحداني صوري لري چې هيڅ فائده پرې مرتبه نه ده اود کمال تر لاس ته راوړلو وروسته بيا هيئت وحداني حقيقي وراغوستل کېږي. بيا کمالات پرې مرتب کېږي، نودلته هم رياست د لطيفهٔ خاکي دى. يعنې په رياست د لطيفهٔ خاکي نوري لطيفې هم کمال ته رسيږي. اوس يو کمالات د نبوت دي او بل منصب د نبوت دى. د نبي منصب ته له نبي څخه پرته هېڅوک نه شي رسېدلى اوکمالاتو ته يې هرڅوک چې د نبي تابع او پيرو وي رسېدلى شي. لکه د حضرت مجدد رحمه الله او نورالمشائخ رحمه الله ولايت ولايت محمدى ﷺ دى. يعنې ولايت محمدي ﷺ ته رسيدلي دي.

دغه اته صفات چې مخکې مو ياد کړل د ټولو انبياوو عليهم السلام مشرب دى. لکه دحضرت عيسى عليه السلام مشرب قدرت دى اود حضرت آدم عليه السلام مشرب تکوين اود حضرت موسى عليه السلام مشرب کلام اود حضرت نوح عليه السلام مشرب علم اود علم اِجمال دى اود حضرت ابراهيم عليه السلام مشرب تفصيل دعلم دى اود حضرت محمدرسول الله ﷺ مشرب شان د علم دى. حضرت

دغـو اجـزاوو تـه ورکـړل شـوی دی هغـه صـورې دي. لکـه د یـوه معجُون لس اجزاوې وي او ټول وټکول شي او سره ګډې شي نودا هیئت وحداني صوري دی چې کومه خاصه فائده وربانـدې نـه مرتبه کېږي. او بیا چې دا اجزاوې په عسلو (شاتو) کې خمیره شي اوخپل ټاکلی وخت وربانـدې تېر شي نو بیا هیئت وحداني حقیقي ورتـه پیدا کېږي. چې لـه دې وروسته بیا فائده هم پرې مرتبه کېږي. همدارنګه کله چې د انسان د اجزاوو تصفیه او تزکیه وشي نو هیئت وحداني حقیقي ورته پیدا شي. نو چې د هیئت وحداني حقیقي په تصفیې اوتزکیې سره څه مرتب کېږي د رسالت له کمالاتو او د اولوالعزم له کمالاتو څخه عبارت دی کوم چې پرته له منصب د رسالت څخه تر دغو پورته کمالات نور نشته. د هیئت وحداني په تزکیه کې هم ریاست د لطیفهٔ خاکي په غاړه ده. یعنې د لطیفهٔ خاکي په تزکیې سره د هیئت وحداني تزکیه راځي او خپل مشرب ته رسیږي او وصلِ عُریان پرې مرتب کېږي. لکه سالک چې وایي:

اول بروب خانہ پس مہمان طلب　　آئینہ شو وصال فرید طلعان طلب

---

محمد رسول اللهﷺ ټول ولایتونه لري او شان د صفت هم لري او نور انبیاء علیهم السلام اونور مخلوق بیا موسی مشربه او ځیني آدم مشربه یا نوحي مشربه یا محمديﷺ مشربه دي.

یعنې اول خپل کور صفا کړه بیا مېلمنو ته دعوت ورکړه چې راځي. نو اول د ځان تصفیه اوتزکیه وکړه خپل کور چې دانسان وجود دی ښه صفا کړه ، بیا د حق سبحانه وتعالی د صفاتو تجلیاتو ته بلنه ورکړه. لکه په عربي کې چې (تخلیه مقدمه ده په تحلیه باندې).

شعر: *صورت آئینه وصورت از سفر دور است*

*که آن پذیر ای صورت از نور است*

یعنې آئینه (هنداره) چاته نه ورځي چې هغه پکې معلوم شي. لیکن کوم صورت چې په آئینه کې ښکاریږي داد آئینې د صفایي وجه ده، نو یو ځل به خپل کور اوخپل ځان صفا کوې بیا به د باري تعالی ﷻ د ذات بحث د صفاتو او شیوناتو انوار په تاکې منعکس کېږي او ښکاریږي.

د ځینو لطائفو لکه د عَالَم امر د فیض مشرب او مبدء د حق سبحانه وتعالی ﷻ اسم ظاهر دی او اسم ظاهر د الله تعالی ﷻ ذاتي صفاتو ته وایي.

اود مشرب دا معنا ده چې په هغه باندې د ذاتي صفاتو فیوضات نازلیږي اود ځینو لطائفو لکه آبي، هوایي او آتشي مشرب اسم باطن یعنې ذاتي صفات دي، کوم چې یواځې په

صفاتو سره اکتفاء نه وي ، بلکې مسمی ورسره ملحوظه وي اودا مقام له هغه بل مقام څخه فوق دی.

نو دا خبره کومه چې ویل کېږي چې : ( مَنْ عَرَفَ اللّٰهَ طَالَ لِسانهُ ) یعنې څوک چې خدای وپېژني نوژبه یې اوږده شي. یعنې عِلم لدُني او علمِ ظاهري او الهامات ورته زیات شي. دا په هغه وخت کې وي چې د فیض مبدء یې اسم ظاهر وي. اودا مقوله چې: ( مَنْ عَرَفَ اللّٰهَ کَلَّ لِسانهُ ) یعنې څوک چې الله وپېژني نو ژبه یې ستړې شي. مطلب داچې ابهام او بې علمي وربانديې غالبه شي. دا په هغه وخت کې وي چې د فیض مبدء یې اسم باطن وي. ځکه چې په دې وخت کې الله تعالیٰ ﷻ ته قُرب زیات شي اوځومره چې قُرب زیاتیږي نو هم هغومره حیرت او اِبهام زیاتیږي او ماسوی له الله تعالیٰ ﷻ څخه نور ټول شیان ترې هېر شي.

شعر:

من ہرچہ خواندہ ام فراموش کردہ ام
اِلّا حدیثِ یار کہ تکرار می کُنم

او چې شیوناتو او اعتباراتو ته ځومره پورته ځي آن تر وصلِ عُریان پورې نو حیرت او اِبهام زیاتیږي او بیا په هېڅ باندې هم نه پوهېږي.

# د صفاتو، شیوناتو او اعتباراتو فرق

صفات او شیونات او اعتبارات څه فرق لري ؟

ددې تفصیل دادی چې : د حق سبحانه وتعالی ﷻ اتو صفاتو ته چې له (سمع، بصر، علم، کلام، قدرت، اراده، حیات او تکوین) څخه عبارت دی له دې حیثیته چې وجود خارجي لري (صفات) ورته ویل کېږي. او له دې حیثیته چې سالک یې له حق سبحانه وتعالی ﷻ څخه انتزاع کوي لېکن منتزعه صفات ورته معلوم وي نو (شیونات) ورته ویل کېږي. او له دې حیثیته چې سالک یې له حق سبحانه ﷻ څخه انتزاع کوي خو منتزعه صفات ورته معلوم نه وي نو بیا (اعتبارات) ورته ویل کېږي.[1]

---

(۱) صفات ثمانیه (اته گوني صفات) وجود خارجي لري او له همدې وجهې صفات ثمانیه ورته وایي. سالک چې کله صفاتو ته عروج وکړي اود انبیاوو علیهم السلام ولایت ته ورسیږي نو که چېرته دسالک استعداد اوهمت لوړ و او یواځې په ثمانیه صفاتو یې قناعت نه کاوه او ملحوظ یې ذات مسمی ، نو دې حالت ته د صفت شان وایي. یا په بل عبارت چې عروج او قُرب یې ذات اقدس بلا کیف ته وي او له صفت څخه پورته تېر شوی وي نو دې حالت ته شان د همدې صفت وایي. اوس نو چې کله د سالک عروج له صفاتو څخه فوق شي، نو سالک به له دوه

حالتونو څخه خالي نه وي . یا داچې دا انتزاع به په اته ګوني صفاتو ( صفات ثمانیه وو ) کې له یوه صفت د ذات واجب الوجود څخه کوي. یعنې که چېرته د یوه مُعَین ( ټاکلي ) صفت څخه یې فیوضات ترلاسه کول نو دې حالت ته شان د صفت ویل کېږي. یاداچې انتزاع به له ذات اقدس څخه کوي. یعنې له هغه صفت څخه چې خارجي وجود لري فوق شوی وي او له یوه غیر معین ( نا ټاکلي ) صفت څخه یې فیوضات حاصلول لېکن دا نه ورته معلومېده چې د کوم صفت فیوضات ورته راځي . د علم ؟ که د سمع ؟ که د قدرت؟ او که د تکوین ؟ نو دې حالت ته اعتبار د صفت ویل کېږي، چې دشان له درجې څخه لوړه درجه لري او څومره یې چې ذات اقدس ته قُرب ( نژدې والی ) راځي ادراک یې کمیږي.

په دې اړه دوه مقولې هم راغلې دي لکه چې وایي: ( مَنْ عَرَفَ اللهَ كَلَّ لِسانُهُ ) ( مَنْ عَرَفَ اللهَ طالَ لِسانُهُ ) یعنې چاچې معرفت د الله تعالیﷻ حاصل کړ نو ژبه یې ګونګه شوه. چاچې معرفت د الله تعالیﷻ حاصل کړ نو ژبه یې اوږده شوه . دا دواړه مقولې په خپل منځ کې سره متضادې دي. نو دویمه مقوله چې (مَنْ عَرَفَ اللهَ طالَ لِسانُهُ) په دې صادقیږي چې د سالک کله عروج ظاهري صفاتو ته راشي. اود صفاتو کمالاتو او معارفو ته چې ورسیږي نو علم یې زیاتیږي چې اسمِ ظاهر او صفت یې هم بولي.

او له دې نه چې پورته ولاړ شي اود اسمِ باطن کمالاتو او معارفو ته ورسیږي چې دې شان ته ( اسمِ باطن ) هم ویل کېږي نو بیا لومړی مقوله یعنې (مَنْ عَرَفَ اللهَ كَلَّ لِسانُهُ) وربانديې صادقیږي، ځکه چې دلته یې ادراک او علم کمیږي. د پورتنیو عباراتو له مخې د صفاتو، شیوناتو او اعتباراتو فرق راغی.

له دې وروسته بیا شپږ اضافي صفات دي. لکه ترزیق، تخلیق او داسې نور. کوم چې مونږ یې په کتابونو کې وایو. دا هغه صفات دي چې الله تعالی ﷻ یې په ضد موصوف کېدلی شي او هغه صفات چې الله تعالی ﷻ یې په ضد نه موصوف کېږي هغه صفات ثمانیه دي. په لومړي ځل د سالک عروج اضافي صفاتو او تجلیاتو ته وي. چې کله یې دا عروج وشي ، فناء بقاء یې راشي نو دې ته ( ولایت صُغری ) ویل کېږي او د ولایت صُغری د فیض مبدء اضافي صفات دي. او چې کله یې په خپله صفاتو ته عروج وشي، په خپله اسم ظاهر ته نو بیا ولایت کُبری یعنې د انبیاوو علیهم السلام ولایت پرې مرتب کېږي. اود ولایت کُبری د فیض مبدء په خپله صفات ذاتیه دي چې ( اصول ) هم ورته وایي. بیا چې کله د سالک عروج ذاتي شیوناتو ته وشي نو دلته ولایت عُلیا پرې مرتب کېږي، چې د ملاء الاعلی ولایت هم ورته وایي. اود ولایت عُلیا د فیض مبدء اسم باطن دی چې له مسمی څخه عبارت دی. یعنې سالک یواځې په صفت اکتفاء نه کوي، بلکې مسمی یې هم ملحوظ وي. سالک چې کله اضافي صفاتو، ذاتي صفاتو، شیوناتو او اعتباراتو ته ورسیږي نو په ټولو کې ( وصل مطلق ) ورته حاصلیږي. چې کله له ټولو تېر شي نو ( وصلِ عُریان ) ورته حاصلیږي.

د الله تعالی ﷻ او د مخلوق ترمنځ اویازره پردې دي، چې ځینې ظُلماني اوځینې نوراني دي. ظُلماني له ( عالمِ مُمکن ) څخه عبارت دی. یعنې له خاکي لطیفې څخه تر ( اخفی ) لطیفې پورې دا ټول عالمِ مُمکن دی. او نوراني پردې د اضافي صفاتو، ذاتي صفاتو، ذاتي شیوناتو او ذاتي اعتباراتو څخه عبارت دي. «إِنَّ لِلّٰهِ سَبْعُونَ الف حجاباً لَوْ كشفت لاحرقت صفحات وجهه ما انتهى بصره» [ الحدیث ] یعنې دا ظلماني او نوراني پردې که جېرته له منځه لرې شي نو بیابه د حق سبحانه وتعالی ﷻ تجلیات په عالمِ مُمکن باندې ولوېږي چې ټول به محوه شي، ځکه چې

په عالم ممکن کې استعداد نشته. نودا ظلماني اونوراني حجابات چې له صفاتو او عالم ممکن څخه عبارت دي د خالق او مخلوق ترمنځ د بېلتون پردې دي، چې د حق سبحانه وتعالیﷻ تجلیات د همدغو حجاباتو له وجې له ممکن څخه مدفوع دي.

لکه څرنګه چې په دې آیت کریمه کې راغلي دي: «لَوْ أَنزَلْنَا هَٰذَا الْقُرْآنَ عَلَىٰ جَبَلٍ لَّرَأَيْتَهُ خَاشِعًا» نو څرنګه چې قرآن کریم د الله تعالیﷻ صفت کلام دی اوپه غره کې د صفت د تجلیاتو استعداد هم نشته، نو څکه الله تعالیﷻ دا خبره وکړه اوپه انسان کې الله تعالیﷻ دومره استعداد ایښی دی چې د صفاتو تجلیات یې نه شي محو کولی او له تجلیاتو د حق سبحانه وتعالیﷻ سره چې مناسبت او لیاقت پیداشي نو هغه هم نه شي محو کولی. لېکن د حق سبحانه وتعالیﷻ د ذات دتجلیاتو استعداد بیا په انسان کې هم نشته.

لکه څرنګه چې مخکې موړویل چې : انسان عبارت دی له ( عالم صغیر ) څخه چې لس اجزاء لري، چې له نفسِ ناطقه سره پنځه د عالم خلق دي او پنځه د عالَمِ امر چې آخري جزء یې ( اخفی ) ده. له هغو کورو څخه چې مخکې یې یادونه وشوه الله تعالیﷻ په خپل ازلي حکمت سره یوه یوه نمونه پکې ایښې ده، چې لطیفه ( مفهوم ) او اشاره ورته دقیقه ده، چې تعبیر نه شي ترې کېدلی ، لېکن کوم تعبیر چې ترې کېږي هغه له تاویل څخه عبارت دی. یعنې کوم علم چې په کُنهې د لطیفې باندې راځي هغه صرف تاویل دی او که نه وي نو د لطائفو د کُنه حقیقت هیچا ته هم نه دی معلوم. مثلاً : «وَمَا أُوتِيتُم مِّن الْعِلْمِ إِلاَّ قَلِيلاً ٨٥» و ایضاً «وَيَسْأَلُونَكَ عَنِ الرُّوحِ قُلِ الرُّوحُ مِنْ أَمْرِ رَبِّي» [ الایة ] یواځې تعبیر ورځخه کېدلی شي، څکه چې داسې انسان نشته چې په کُنهه یې علم راولي.

اوس نو یو ( قلب ) دی او بله ( قلبي لطیفه ) . قلب هغه صنوبري جسم دی چې له عالم خلق څخه جوړ شوی دی. او قلبي لطیفه د نوري کوري هغه جزء دی چې دلته په قلب صنوبري کې مظروف یعنې ځای ورکړی شوی دی. عالم کبیر فوق العرش دی او عرش د عالم امر او عالم خلق ترمنځ په حقیقي معنا سره برزخ دی. اوپه عالم صغیر کې قلب په مجازي معنا سره برزخ دی، چې عالم اصغر ورته وایي. نو له دې وجې په قلب باندې د مبارکو احادیثو له مخې د عرش اطلاق شوی دی. په دې حیثیت سره چې قلب هم برزخ دی لکه د عرش، خو په مجازي معنا سره، ځکه چې دلته خو داسې نه دي چې له قلب څخه پورته یو شی دی او لاندې ترې بل شی دی، ځکه چې قلب دلته د عناصرِ اربعه وو په منځ کې دی. برزخ په دې معنا سره دی چې د قلبي لطیفې له پاره محل دی او هغه پکې حال دی. نو فیض لومړی هغه نُوري لطیفې ته راځي، ځکه چې هغه نوري ده او له حقیقت وجوب سره مناسبت لري. او بیا یې محل ته راځي. دمحل په ذریعې سره بیا ټول وجود ته تقسیمیږي،نو له لطیفې سره د حال ارتباط محل لري او له نور سره ذاتي اشتراک لري.نو قلب د نورانیت په اخذ کې اود نورانیت په تقسیم کې برزخ دی، چې هلته عرش برزخ شو او دلته قلب برزخ شو.

اوس لکه څرنګه چې مونږ: مخکې وویل چې په قوهٔ خیالي سره د عالم صغیر د لطائفو عشره وو دکمالاتو تمیز کیږي ، یعنې چې کله کمال دیوې یا دوه وو لطیفو راشي. یا په بل عبارت چې فناء بقاء یې راشي نو نِسیان د ماسوی الله ورته حاصل شي. یعنې د تجلیاتو د شوق له وجې د نورو ټولو شیانو حُب لکه : د دُنیا حُب، د مال حُب، د عیال حُب او داسې نورو شیانو حُب یې پرهیزی وي ، له ځانه یې لرې کړي او محوه کړی یې وي ، چې کله فناء راشي نو وروسې بقاء راځي. بقاء د همدې لطیفې په اضافي صفاتو، شیوناتو او اعتباراتو په تجلیاتو باندې ککړوالي ته وایي. نو فناء او بقاء عبارت دی له ولایت څخه او په ولایت کې دوه مهم شیان دي

چې : يو فناء او بل بقاء دى. نو كه فناء د يوې لطيفې راشي ولايت د يوې لطيفې راغى اوكه د دوه وو راشي نو دوه ولايته راغلل اوكه د ټولو راشي نو بيا پوره ولايت راغى. نو په قوة خيالي سره دا څرګندېږي چې د عالم امر اجزاوو ته فنا حاصله شوې ده او ولايت صُغرى پرې مرتب شوى دى او د فيض مبدء يې اضافي صفات دي، كه چېرته فناء بقاء او تصفيه د لطيفهٔ نفسي راشي يعني نفسِ ناطقه تصفيه شي نو بيا دا وربانديې معلومېږي چې ولايت كُبرى پرې مرتب شوى دى او مبدء يې په خپله صفات دي، او رتبه يې لوړه شوې ده، چې دا حديث شريف هم پرې صادقيږي: ( خِيارُكُمْ فِى الجاهلية خِيارُكُمْ فِى الاسلام ) نو د عدمِ تصفيې په وخت كې لطيفه د نفس تابع وي او دهغه غُبار پرې لوېدلى وي، چې كله يې تصفيه راشي نو بيا د خِيار په جمله كې راشي، څكه چې د هغه ولايت صُغرى دى او دده كُبرى دى، چې له دې وجهې لوړ شو. او چې كله تصفيه د دريو نورو لطائفو لكه هوايي، ناري، آبي راشي نو ولايت عُليا پرې مرتب كېږي، چې ولايت د ملائكه وو دى اود فيض مبدء يې اسمِ باطن دى، چې شيونات يې هم بولي نو دا ولايت د ملائكه وو د انبياوو تر ولايت فوق شو. اوس چې كله لطيفه خاكي كمال ته ورسيږي او تصفيه يې راشي نودا حديث پرې صادقيږي چې: ( مَنْ تواضعَ لله رفعه الله ) ولايتونه درې دي، چې بيان يې تردې ځايه پوره شو. والله اعلم.

په كمال د لطيفهٔ خاكي سره د نبوت كمالات مرتب كېږي. لكه څرنګه چې وايي:

خاک شو خاک تا بروئيد گل　　　که بجز خاک نيست مظهر گل

زمين زاده بر آسمان تاخته　　　زمين و زمان را پس انداخته

نو په تصفيه د لطيفهٔ خاكي سره د نبوت كمالات حاصليږي او مبدء د فيض يې د ذات بلا كيف اقدس ﷻ تجلي دى چې له دې وجهې له ملائكو اشرف او بهتر دى،

يعني كله چې په سالک باندې د خودي صفاتو فيض راځي او بيا له صفاتو څخه شيوناتو ته عروج وکړي، نو دی په واسطه د يوه مُعين صفت سره د باري تعالیٰﷻ له ذات څخه د فيض اخذ کوي. او کله چې اعتباراتو ته عروج وکړي نو بيا له الله تعالیٰﷻ څخه د فيض اخذ کوي، خو دا ورته نه معلوميږي چې د کوم صفت په واسطه سره يې کوي. نو څومره چې قُرب راځي همدومره جَهالت زياتيږي. او دا مقوله پرې صادقيږي چې: ( مَنْ عَرَفَ اللهَ كَلَّ لِسانهُ )

الله الله

---

خاص يې له خاصو ملائکه وو او عام يې له عامو ملائکه وو بهتر دي، ځکه چې هغوی لطيفهٔ خاکي نه لري.

امام غزالي صاحب رحمة الله عليه وايي چې: ( الصوفي كالارض يطرح عليها كل قبيح ولا يخرج منها الا كُل مليح ) او يا ( الصوفي كالمطر يسقي كل شئ ) اويا ( الصوفي كالسحاب يظل كل شئ ) يعني صوفي د ځمکې په څېر دی ، په ځمکې باندې چې څه شی واچول شي که سرّه وي، که گندگي، خو دوی يې په نتيجه کې داسې شيان خارجوي چې د انسان ژوند ورپورې ترلی وي، يا صوفي د باران غوندې دی چې هر شي ته اوبه ورکوي . يا صوفي د وريځ غوندې دی چې په هر شي باندې سيوری کوي.

# دریم بحث

## د توحيدِ وجودي او شهودي بیان

لومړی باید ووایو چې: له وجودیه وو (هغه خلک چې په وحدة الوجود قایل دي) څخه چې کوم اقوال په حالت د سُکُر اود حال د غلبې په وخت کې صادریږي؛ ټول اهل سنت والجماعت اود څلورو طریقو اهل عقیده وربانديې نه کوي، تردې پورې چې ددوی ځینې الفاظ له شریعت څخه هم ډېر لرې وي. لکه (اَنَا الحَقُّ) اویا (سُبحانِيَ مَا اعظمَ شاني؟) چې دا الفاظ څوک د بیدارۍ او صحت په حالت کې ووایي نو پرې مشرک کېږي. خو له دوی څخه په حالت د سُکر کې خارجیږي.

اصلاً کله چې په دوی بانديې الهي عشق او محبت غالب شي اودوی مغلوب شي نو بې اختیاره له دوی څخه دا الفاظ صادر شي. او چې کله په دوی دحال غلبه راشي نو دوی هم بېرته توبه ګار شي. او کله چې په دوی بانديې د حال غلبه راځي نو له دوی

څخه هر شی هېر شي. آن تردې پورې چې خپل ځان هم ترې هېر شي او له الهي انوارو پرته نور څه نه ويني، نو وايي چې: (همه اوست). او دوی (وجوديه) دا هم وايي چې: الله تعالیٰ ﷻ پنځه تنزلات يا پنځه ظهورات کړي، چې پنځه حضرات او پنځه تقدسات هم ورته وايي. يعنې الله تعالیٰ ﷻ اولاً د (لاتعين) په مرتبه کې وو. بيا يې پنځه تعينات وکړل. اول تعين د اجمالي صفاتو په ظهور سره. دوهم تعين د تفصيلي صفاتو په ظهور سره.

اجمالي صفات دې ته وايي چې: ظهور د صفاتو راغلی وي خو له چاسره يې تعلق نه وي راغلی او تفصيلي صفات دې ته وايي چې: له مُمکناتو سره يې تعلق راغلی وي. (١)

---

(١) عالم مُمکن دوه حقيقته لري: يو امکاني او بل وجوبي. د وجوبي حقيقت معنا دا نه ده چې: د مُمکن په ذات کې العياذ بالله حقيقت وجوبي پروت دی. څکه چې په دې سره قلب د حقائقو راځي. ممکن خوترقيامته پورې حادث وي. نو حقيقت وجوبي دا معنا چې هغه صفت چې ولي ته فيض ورځخه راځي هغه يې حقيقت وجوبي بلل کېږي. يعنې چې دکوم صفت فيض ممکن ته راځي هغه يې حقيقت وجوبي بلل کېږي. يا په بل عبارت د انسان د هر فرد حقيقت وجوبي په دې معنا سره دی چې : له هغه څخه ده ته علی الدوام ( تل ترتله ) فيض راځي. او حقيقت امکاني عبارت له عالم امر او عالم خلق څخه دی کوم چې مخکې بيان شول. لکه عناصر اربعه او نفسِ ناطقه. او هغه پنځه لطائفې چې تر عرش فوق دي د عالم امر او عالم خلق حقيقت د ممکن دي. مخکې چې د حق سبحانه وتعالیٰ ﷻ صفات ثمانيه او ذاتيه بيان شول . لکه حيات ، علم، قدرت ، اراده ،

کلام ، سمع، بصر او تکوین چې دا صفات ثمانیه هر یو ضد او نقیض لري. د حیات د صفت ضد عدم حیات، د علم عدم علم دی چې تعبیر یې په جهل سره کېږي. همدارنګه د ټولو صفاتو نقیض او ضد عدم د هغه صفت دی. یعني دذاتي صفاتو عدمات متقابله په علم د باري تعالیﷻ کې وو. لکه مونږ، تاسو او آسمانونه بالکل نه وو خو په علم د باري تعالیﷻ کې اجمالاً موجود وو. نو له صفات ثمانیه وو څخه به یو لکه: حیات را واخلو. دا حیات چې ضد یې عدم حیات دی، چې تعبیر یې په موت سره کېږي ، نوداهم په علم دباري تعالیﷻ کې پروت دی اوهمدارنګه ټول متقابله عدمات په علم د باري تعالیﷻ کې شته، خو ټول د تجلی له انعکاسه اود خپل صفت له متقابل ظل څخه ممزوج دي. یا په بل عبارت په عدم د حیات کې د حیات د صفت دتجلی انعکاس پروت دی اودا کمال د حیات چې معلومېږي له عدم حیات نه معلومېږي . کمال د علم چې معلومېږي نو له جهل څخه معلومېږي. لکه څرنګه چې ویل شوي دي چې: ( تُعْرَفُ الاشياءُ بِاَضدَادِهَا ) یعني په متقابل صفت کې د هغه صفت انعکاس پروت دی. په عدم دحیات کې دحیات، په عدم د علم کې د علم. اوداسې نور. د مثال په ډول: ما او تا، ټول انبیاء علیهم السلام، ټول انسانان او ټول مخلوق راوخله نو که چېرته زما عدم فرد وي له عدم د حیات څخه او ستا عدم فرد وي له عدم د علم څخه اود یوه بل سري عدم فرد وي له عدم دکلام څخه نو په عدم دحیات کې خو انعکاس دحیات پروت وو، نوزما عدم به هم فرد وي له عدم دحیات څخه. اوزما په عدم کې هم د حیات د صفت انعکاس پروت وي. همدارنګه نور افراد هم همداسې دي. نود باري تعالیﷻ دتخلیق له صفت څخه وروسته چې دا عدمات ممزوج شو، نودا عدمات ممزوجه سره له تجلیاتو د متقابله صفاتو خدای تعالیﷻ وجود ته راوستل،نو انعکاس د هغه صفت چې په وخت د عدم دیوه سري کې پروت وو له موجودېدو وروسته یې هغه صفت مُرَبی او مشرب شو.

لېکن د انبیاوو علیهم السلام اود نورو مخلوقاتو فرق په دې کې دی چې : د انبیاوو علیهم السلام عدمات په علم د باري تعالیﷻ کې په منزله د هیولا وو اود نورو مخلوقاتو په منزله د صور وو. یا په بل عبارت انعکاس د هغو صفاتو په عدم ددوی کې په منزله د هیولا وو او عدمات د اشیاوو په منزله د صورو وو نو انبیاء علیهم السلام چې وجود ته راغلل عدمات یې په دوی کې ضعیف وو اوتجلی او انعکاس د صفاتو په عدم ددوی کې قوي وو نو ځکه دوی معصوم شول. یعنې هغه نقض د عدم چې مظلم او مکدر شی دی په دوی کې ضعیف اود حق سبحانه وتعالیﷻ د صفاتو تجلیات په دوی کې قوي . او دنورو مخلوقاتو عدمات په دوی کې قوي او په منزله د هیولی وو او انعکاس د صفت پکې په منزله د صورو وو . یعنې تجلي پکې ضعیفه وه، نو چې وجود ته راغلل غیر معصوم وجود ته راغلل، ځکه چې عدمات په دوی کې قوي وو او انعکاس د صفت په دوی کې ضعیف ، له دې وجهې غیر معصوم شول. نو حقیقت د ممکن د صفات ثمانیه وو دهغو عدماتو چې ممزوج وو له انعکاس دهغو صفاتو ثمانیه وو ځخه نو ممکن عدم شو او له عدم ځخه وجود ته راغی، یا عدم پکې قوي شو. یعنې قوي نقض پکې راغی ځکه چې له عدماتو ځخه عبارت شو. نو اوس دا معشوقه یعنې حُسن ددې معشوقې چې سری پرې عاشق کېږي په وخت د عدم د معشوقې کې هغه انعکاس د هغو صفاتو په نسبت وو هغو نورو ته. او هغه انعکاس د صفت په هغې کې قوي وو، نو ځکه تر هر شي شیرین، تر هر شي اعز او اشرف معلومیږي. نو په هغو کې هم په وخت دعدم کې هغه انعکاس دصفاتو پکې زیات شو.

| | |
|---|---|
| جمال اوست ہر جا جلوه کرده | ز معشوقان عالم بسته پرده |
| بہ ہر پرده که بینی پرده گی است | قضا جنبان ہر دل بردگی اوست |

يعني دغو معشوقو ته چې حُسن ورکړی شوی دی نو په وخت د عدم کې دصفاتو انعکاس پکې زيات شوی دی. جامي صاحب رحمه الله له توحيد وجوديه ( موحد وجوديه ) څخه وو، چې په دې اړه يې داسې بيتونه ويلي دي:

دلی کان عاشق خوبان دلجواست　　اگر داند وگرنه عاشق هم اوست
الا تا در خطا نیفتی که گوئی　　که از ما عاشقی واز وی نیکوئی
که هم چون نیکوئی عشق ستر ده　　از و سر بر زده در تو نهاده

يعني داسې مه وايه چې: زه عاشق يم او الله تعالیٰ ﷻ معشوق دی .
اوپه بل بيت کې وايي چې: عاشق هم خدای دی او معشوق هم خدای دی.

توئی آئینه وآئینه آرا　　توئی پوشیده واوآشکارا
چو نیکو بنگری آئینه هم اوست　　به چشم تیز بینت هر چه نیکواست
چو نیکو بنگری عکس رخ اوست　　نه تنها گنج بل گنجینه هم اوست
ز رویش روی خود آراسته لیلیٰ　　به هر مویش ز مجنون خواست لیلیٰ

يعني : د پروردگار عالم له جمال څخه د ليلى جمال پيدا شوی ، چې له دې وجهې دمجنون په هر وېښته باندې عشق غلبه وکړه. په ليلى کې انعکاس د عدم د صفت دهغې قوي وو په نسبت نورو ته چې مجنون ورباندې عاشق شو.

ز نور ش تاب به خورشید یک تاب　　بیرون آورد سنبل را سر از آب

سنبل يا نيلوفر د درياب هغه وابنه دي چې په لمر باندې عاشق دي، څکه چې د الله تعالیٰ ﷻ دا نور په عدم د لمر کې قوي او زيات دی، نو حقيقت د ممکن دادی چې هغه عدمات چې دحق سبحانه وتعالیٰ ﷻ دصفاتو دتجلياتو له انعکاس څخه ممزوج وو او ممکن ټول نقض، حدث او عدم شو . په نزد د شهوديه وو د ممکن دا حقيقت دی. اوس نو هغه انعکاس چې په وخت د عدم کې پروت و په وخت

دوجود کې یې چې دهر صفت انعکاس وي هغه یې مربي او مشرب دی. هره تجلی د یوه صفت چې په وخت د عدم کې ضعیف وي په وخت د وجود د طُرُق اربعه په اذکار سره قوي کېږي، غالبیږي، نورانیت یې زیاتیږي او عدم یې چې زیات دی هغه کمیږي. له دې وجهې کوم ځای ته چې ولي راشي یا په کوم ځای کې چې موجود وي نو هلته په خپله بې اختیاره د مخلوقاتو جلب وي، ځکه چې په ولي کې د صفت هغه تجلیات چې په وخت د عدم کې ضعیف وو په ذکر، ریاضیاتو او تکالیفو سره دهغه صفت انعکاس قوي شوی دی او عدم یې ضعیف شوی دی، لېکن داسې نه شي کېدلی چې عدم بالکل محو شي، ځکه چې بیا قلب د حقائقو راځي او قلب د حقائقو صحیح نه ، بلکې حرام دی. او عدم حکم د لباس پیدا کوي. هغه تجلیات چې په اذکارو او د انبیاوو علیهم السلام د شریعت په متابعت سره قوي شي نو باطن د ذاتي صفاتو دتجلیاتو له ځای څخه عبارت شي. یا په بل عبارت عالمِ خلق یې د ذاتي صفاتو له تجلیاتو څخه او عالم امر یې د حق سبحانه وتعالی ﷻ له تجلیاتو څخه عبارت شي او عالم خلق او عالم امر په منزله یا مرتبه د لباس کې پاتې شي، نودا مسلک د اهل شهودیه وو دی چې حقیقت د ممکن عبارت له دې څخه دی اودا قول کوي چې ( همه از است ).

او وجودیه صوفیه چې دي دهغوی ټول کیف او څرنګوالی د شریعت له ظاهر څخه مخالف دی، نو ددې له پاره یې تعبیر کوو چې په دې مرام او مقصد باندې یې پوهه شو.

وجودیه وایي چې: حقیقت د مُمکن ډېر مشرف، اشرف او ډېر اعز دی او حق سبحانه وتعالیﷻ په لومړي سر کې په صفاتو ثمانیه وو سره ظهور کړی دی.

جامي صاحب رحمة الله علیه وایي :

درآن خلوت که هستی بی نشان بود   به کُنج نیستی عالم نهان بود

یعني په هغه وخت کې چې حق سبحانه وتعالی ﷻ ظهور نه کړی نو آسمان، ځمکه او ممکن د باري تعالی ﷻ د صفاتو مظهر نه وو ګرځېدلي.

وجودی بود ز نقش دوئی دور   ز گفتگوی مائی وتوئی دور

یعني: زه او ته او همدارنګه د ټولو شیانو وجود چې نه وو

جمال مطلق از قید مظاہر

به نور خویش ہم بر خویش ظاہر

یعني هیڅ مظهر نه وو، نه مظهر د تجلیاتو د صفاتو وو، نه آسمان وو، چې مظهر د باري تعالی د قدرت دی. نه ځمکه وه چې مظهر د علم د قدرت د باري تعالی ﷻ ګرځېدلی وای. نه انسان چې مظهر د قدرت د باري تعالی ﷻ ګرځېدلی وای. یعني دی په خپل نور سره مظهر او ظاهر و.

نه بر آئینه رویش در میانه   نه زلفش را کشیده دست شانه

یعني: نه په صفاتو ذاتیه وو او نه په صفات اضافیه وو سره ظاهر و. لکه څرنګه چې یې ویلي دي: ( فخلقت الخلقَ لأُعرف ) هیڅ شی هم نه و، هلته یو الله ﷻ و، دوست هم دی و، مُحب هم دی و، محبوب هم دی و، کمال د محبت هم هلته و. چې کله یې ظهور وکړ نو یې ظهور په صفات جمالیه وو سره وکړ. چې اولنی ظهور او احدیت هم ورته وایي. اوپه نزد د وجودیه وو ( حقیقت محمدي ) ورته وایي. بل وار یې ظهور په صفاتو تفصیلیه وو سره وکړ. یعني صفات جمالیه هغه صفات بولي چې: تعلق یې له مخلوق سره نه وي نیولی. چې کله یې صفاتو د مخلوق له وجود سره تعلق ونیو نو آسمان، ځمکه، زید، خالد او داسې نور یې پیداکړل چې دا بیا صفات تفصیلیه بولي، یعني بیا حق سبحانه وتعالی ﷻ ظهور وکړ په صفاتوتفصیلیه وو سره. چې وجودیه یې ( حقیقت د ممکن ) بولي. یا په بل عبارت

وجودیه ظهور د صفات اجمالیه وو حقیقت د انبیاوو بولي. اوپه صفاتو تفصیلیه وو سره حقیقت د عالم ممکن بولي . او په نزد د دوی باندې صفات خارجي وجود نه لري، بلکې علمي وجود لري اوحصول د اشیاء بانفسها بولي. اودا صور د صفاتو صور علمي دي اوددوی صور عین صور دده شو، صور بیا عین قائم مقام په حق سبحانه وتعالیﷻ پورې شول. نو العیاذ بالله صور خو مخلوق دي، ممکن دي اود دوی صور عین صور شو. العیاذ بالله.

یعنې د وجودیه وو په نزد د تفصیلیه وو دا ظهور د ممکناتو حقائق دي. نو حق سبحانه وتعالیﷻ یوځل ظهور وکړ په صفاتو اجمالیه وو باندې. بل ځل یې ظهور وکړ په صفاتو تفصیلیه وو باندې. بل ځل یې ظهور په عالم ارواح سره وکړ چې مرکز یې تر عرش فوق دی. بل ځل یې ظهور وکړ په عالم مثال سره چې د عرش مهدب دی . او بل ځل یې په عالم اجساد سره ظهور وکړ چې ټول یې پنځه ظهورات وکړل، چې پنځه حضرات او پنځه تنزلات هم ورته وایي. پنځه حضرات ځکه ورته وایي چې: دا ټول مبارک شیان دي. تنزلات ځکه ورته وایي چې: تنزل یې وکړ یو ځل په صفاتو اجمالیه وو سره او بل ځل په صفاتو تفصیلیه وو سره . اوداسې نور. نو په ممکن کې ددوی په نزد عدم رانه غی. له دې وجهې عالم ممکن یو ظهور له ظهوراتو د حق سبحانه وتعالیﷻ ځخه شو. لکه منصور حلاج صاحب چې: ( انَاالحقُّ ) ویلي و اوبایزید بسطامي صاحب رحمه الله د ( سبحانی ما اعظم شانی ) الفاظ ویلي وو. او اکثره اهل الله په اولې مرحلې کې په توحید وجودي کې مشغول او مستغرق وي، چې بیا توحید شهودي ته عروج کوي، وروسته بیا تردې هم پورته ځي، د ولایت سه گانه په کمالاتو مشرف کېږي او عروج کوي، بلکې کمالاتو د نبوت، اولوالعزمه انبیاوو ، بیا کمالاتو د رسالت ته په کمال د تابعیت دخپل نبي سره عروج کوي.

اوس به راشو د وجوديه وو ددې خبرې تطبيق ته. وجوديه د ډېر عشق او محبت اود صفاتو د تجلياتو د ډېرې غلبې له وجهې چې د صفاتو تجلى دومره پرې غالبه شي چې ماسوى له حق سبحانه وتعالىﷻ څخه نور ټول شيان پرې مختفي شي اويه ټولو شيانو حكم د عدم كوي او يواځې او يواځې حق سبحانه وتعالىﷻ موجود بولي، صفاتو ته هم علمي صُور ثابتوي او وايي چې دا وجود د حق سبحانه وتعالىﷻ يو صفت كامله ده، په دې صفت كې ورسره بل څوک څنگه شريکېدلای شي ؟ نو د ډېر عشق او محبت له جهته دوى وايي چې: ( همه اوست ) اود ( همه اوست ) حكم كوي. يعنې بل څه نشته. او دې عالَمِ ممكن او مخلوق ته ظهور خارجي وركوي او وجود خارجي يې نه بولي، لكه په آئينه كې چې څوک يو شكل ويني نو په آيينه كې شكل وجود خارجي نه لري، بلكې ظهور خارجي لري، نودوى په دې ډول سره عالَم ممكن ټول ظهور خارجي بولي او وايي چې: خالص دخدایﷻ ظهور خارجي راغلى دى.

په دوى كې بيا فرق دى. ځينې يې په مَعيتِ ذاتي قول كوي، ځينې يې د احاطې خبره كوي. العياذ بالله. ځينې يې سوريان بولي. لېكن دا كيفيت ددوى د سُكرله حالت څخه وي. چې كله په هُوش كې راشي بيا داسې نه وايي. كه يې ووايي نو بيا خرابيږي. فرعون چې (( انا ربكم الاعلى ) وويل نو كافر شو. او منصور حلاج رحمه الله عليه چې ( انا الحق ) وويل هغه د خدایﷻ ولي و. څكه چې ده ( اناالحق ) وايه نو دا وجود صوري يې محو كړى و. فنا يې راوستې وه اوپه وجود موهوبي، نوراني او وجود روحاني باندې دده (اَنَا) صادق كېده. اود ( اناالحق ) دا نسبت ببرته د ذات باري تعالىﷻ د صفاتو تجلياتو ته وو. د هغه خپل عدم، مُمكن، عَالَمِ خلق او امر نه و، څكه چې هغه بشري وجود لرې كړى وو. چې مثال يې داسې دى لكه: اوسپنه چې پښ يا آهنگر د اور كوري ته داخله كړي نو دا اوسپنه ټوله اور

وګرځي نو وار له واره د باري تعالیﷻ د صفاتو نورانيت د ولي په وجود کې داسې شي لکه اوسپنه چې کورې ته ننه ایستل شي اود ولي ټول وجود نور وګرځي. بل وجود پیدا کړي چې هغه ته روحاني، نوراني او رحماني وجود وایي. اود ( اناالحق ) نعره په داسې وجود باندې صادقیږي چې بېرته یې نسبت خدایﷻ ته راجع کېږي. له دې وجې منصور صاحب ( ولي ) دی او فرعون بدبخته د ( اَنَا رَبُّكُمُ الاَعْلٰى ) په نعرې سره کافر دی. او دا ځکه چې هغه خپل صوري وجود نه و محوه کړی. نه یې روحاني او رحماني وجود درلود. که چېرته حضرت منصور حلاج رحمه الله د ( اناالحق ) غږ په خپل بشري وجود صادقولی اوخپل ځان یې حق بللی نوپه شپه او ورځ کې یې زر ( ۱۰۰۰ ) رکعته لمونځ چاته کاوه ؟ چې کله اوسپنه سره شي نو بېرته اوسپنه شي. او ( ولي ) چې کمال ته نه وي رسېدلی نو بېرته پرې وجود بشري راځي اوچې کمال ته ورسیږي لکه کیمیا چې په اوسپنې کې استعمال شي نو تر قیامته له اوسپنې سره وي. د ولي چې کله تصفیه او تزکیه وشي نو وجود موهوبي یې تر قیامته پورې وي. چې کله بیا کمال ته ورسیږي نو بیا له وجود موهوبي څخه بېرته وجود صوري ته عَود کوي . اوکه کمال ته ونه رسیږي نو تجلیات صوري او تجلیات انفسي چې ورته راشي نود وجودیه وو غونډې بیا په دې وخت کې دا چتیات وایي او له شریعت څخه مخالفې خبرې کوي. لېکن چې کله بېرته په حال شي بیا هغه خبرې نه شي کولای او که یې وکړي نو بیا خرابیږي.

نو وجودیه وو اوس عالَم ممکن مشرف او اعز وګرځاوه او وجود خارجي ورته نه ورکوي. بلکې ظهور خارجي ورکوي او علماء ظواهر عالَم ممکن ته وجود خارجي ثابتوي، ځکه چې که چېرته یې ورنکړي نو مدار د تکلیف په ظهور خارجي نه راځي. جنت، جهنم، درد او تکلیف خو په وجود باندې راځي. حق خو داده ممکن خو عدم دی.

حضرت مجدد الف ثاني قدس الله تعالى اسراره بيا نه له افراط او نه هم له تفريط څخه كار اخلي. بلكې داسې وايي چې : ممكنات وجود ظلي لري. يو وجود خارجي ده چې يواځې او يواځې حق سبحانه وتعالىﷻ دى او صفات ثمانيه هم وجود خارجي لري او ممكنات چې دي وجود ظلي لري. او وجوديه وايي چې: عالم ممكن ظهور خارجي لري، نه وجود خارجي او نه ظلي. دلته په حضرت مجدد صاحب رحمه الله دا سوال وارديږي چې: كله ممكنات وجود ظلي ولري نو وجود ظلي خو بيا مدار د تكليف نه شي گرځېدلى، ځكه چې بيا (تكليف دمَالاَيُطاق) راځي. نو حضرت مجدد صاحب رحمه الله په ځواب كې وايي چې: ممكنات خو ظهور خارجي لري، لېكن دا صُنع او فعل د حق سبحانه وتعالىﷻ دى اود حق سبحانه وتعالىﷻ صُنع او فعل خو يو ډول اتقان لري او داسې فعل او صنع نه دى لكه د نورو مخلوقاتو. نو په اتقان باندې د تكليف دا ترتُب مرتب دى چې په دې سره حضرت مجدد صاحب رحمه الله بَينَ البَينْ شو. نه داسې شو لكه د وجوديه وو اونه داسې شو لكه علماء ظواهر. علماء ظواهر ته خو يې وجود ظلي د تكليف مدار ثابت كړ او له وجوديه وو څخه عذر كوي چې وجوديه دا خبرې له فرطه دمحبت او له ډېر زيات عشق او چې كله ظهور د تجلياتو ورته وشي نو داخبرې كوي. نو ټول شيان پرې مختفي شي او حكم كوي چې: بل شى نشته يواځې حق سبحانه وتعالى ﷻ موجود دى. لكه په ورځ كې چې څوک ستوري نه ويني، ځكه چې په ورځ كې د لمر شعاوې غالبې شي. ستوري مختفي شي،نو په دوى باندې هم چې تجليات د مراتبو دوجوب راشي نو عالم مُمكن ترې مختفي او پټ شي. نو بيا داسې زياتوالى ترې وشي چې حكم په انتفاء كوي.

او شهوديه كه څه هم شعاوې د لمر پرې غالبې شي خو چې لږ رسوخ يې راغلى وي نو په ماسوى باندې نه ددې حكم كوي چې ثبوت لري اونه ددې حكم كوي چې نه يې لري. يعنې په ماسوى باندې نه حكم د اثبات كوي او نه هم د نفي.

وجوديه وو ته چې دا حالات پېښيږي نو په مرتبه د علمِ يقين کې ورته پېښيږي. بلې خوا ته دعلمِ ظاهر علماء هم علم يقين لري. لېکن ددوی ترمنځ فرق دادی چې له حق سبحانه وتعالیٰﷻ سره د وجوديه وو ارتباط کشفي دی اود علماء ظواهرو استدلالي دی. چې په دې خبرې کې د ظواهرو او وجودي صوفيانو اختلاف دی.

شهوديه بيا په مرتبه د ( عين اليقين ) کې دي. کله چې شهوديه دعلم او عمل په واسطه سره له دې مقام څخه فوق شي يعنې حق اليقين ته ورسيږي نو بيا واجب په خپلې مرتبې کې واجب او ممکن په خپلې مرتبې کې ممکن او حادث ورته مظلم، مکدر، شر او ناقص معلوميږي. او واجب او وجود حق سبحانه وتعالیٰﷻ واجب په خپله مرتبه او ممکن په خپله مرتبه لکه ظواهر چې په حصول د کمالاتو دا حکم کوي.

حضرت مجددصاحب مبارک رحمه الله داسې وايي چې: د حق اليقين مرتبه داسې مرتبه ده لکه د باران چې په مونږ باندې اوري اوصورت مو تول لوند شي، نو د انبياوو عليهم السلام د حق اليقين مرتبه ده او عين اليقين لکه په کوټې کې چې ناست يو او په بام باندې د باران څاڅکي لوېږي نو زمونږ چې په باران باندې کوم علم راځي دا عين اليقين دی. داکثرو اهل الله وو په حق سبحانه وتعالیٰﷻ اود شريعت په احکامو عين اليقين دی اود علماءظواهر او وجوديه وو علم داسې دی لکه دبرېښنا چې توره وريځ راشي او برېښنا ورسره وي نوپه باران باندې علم اليقين راځي. نو وجوديه هم دعشق اومحبت له امله داوايي چې: ( همه اوست ) . له دې وجې نه چې العياذ بالله هغوی ځانونه حق بولي. اودوجوديه وو ددې خبرې يو تطبيق دا هم دی چې دوی ( همه اوست ) په هغه وخت کې وايي چې :مخلوق عدم وي،يعنې په وخت دتعين اول دسبحانه وتعالی ﷻ کې چې مخلوق وجود نه لري. نوخودبه (همه اوست ) وايي. ځکه چې په هغه وخت کې خو صحيح ده.

ځکه چې مخلوق نشته. او ټول په اجمالي علم دحق سبحانه وتعالیﷻ کې هلته پراته دي.

لنډه داچې وجودیه هم اهل الله دي. دخدای تعالیﷻ دوستان دي. لېکن حضرت مجدد صاحب رحمه الله وايي چې : دوی باید ضرور له دې مرتبې تېرشي. اونور خلک دې ورپسې ردبد نه وايي. ځکه چې دوی معذور دي. داکومې خبرې چې ترې صادرېږي له ډېر عشق او محبت صادرېږي. اودوی ته هم دا ضروري نه ده چې : په دې مقام کې پاتې شي. لکه څرنګه چې خواجه عزیزان زنده دلان رحمه الله قول کړی دی چې: که چېرته د عبدالخالق غجدواني رحمه الله یو حقیقي زوی موجود وای نو منصور به چا نه وای په دار کړی، ځکه چې د وجودیه وو له دې مقام څخه به یې تېر کړی وای اود شهودیه وو مقام ته به یې رسولی وای. چې له ده څخه به د شریعت مخالفت نه وای پېښ شوی. منصور صاحب رحمه الله هم چې په دار شو نود خدای ﷻ له عشق او محبت څخه په دار شو. یعنې دا حلاج چې د مبالغې صیغه ده او معنا یې ( ډېرښه جلا کوونکی د پنبې ده له دانې څخه) دی مبارک بازار ته راغی، په یوه دکان کې ناست و او دکاندار ته یې وویل چې: ولاړشه او فلانی کار وکړه! زه به دې په دکان کې کېنېنم. دکاندار ورته وویل چې زما دا وظیفه ده چې له دانوڅخه پنبه جلا کوم. ده ورته وویل چې: دا کار به دې زه وکړم اوته زما کار وکړه ! دکاندار ولاړ او چې بېرته راغی نو دی مبارک مراقبه و او دانې او پنبه په خپله سره جلا کېدلې.ترڅو چې دکاندار رارسېده نو پنبه او دانې سره جلا شوې وې.نو له دې وجې منصور صاحب ته حلاج وايي. دی مبارک ډېر لوی ولي و. او بد رد ویل ورپسې نه دي صحي. العیاذبالله.

دوجودیه وو اکثر اولیاء الله له دې مقام څخه تېر شوي دي.لکه حضرت جامي صاحب رحمه الله هم په لومړي ځل کې له وحدت وجودي څخه و، بیاترې تېر شو. اودحضرت جامي صاحب قبلګاه صاحب ( والد ) مبارک شیخ عبدالاحد صاحب هم

په وحدت وجودي کې و، لېکن زر ترزره ورځخه تېرشو او وحدت شهودي ته ورسېده. او بيا چې فضل او کرم د خدای تعالی ﷻ په چا وشي نوحق اليقين ته هم ورسيږي.

وجوديه په درې ډوله دي: يو وجود خارجي دی، يو وجود نفس الامری دی او يو وجود ظلي دی. وجود خارجي يواځې د حق سبحانه وتعالی ﷻ اود صفات ثمانيه وو دی. وجود نفس الامری جنت، لوح محفوظ، عرش او قلم وجود نفس امري دي. وجود ظلي بيا عالم ممکن دی. مثال يې داسې دی لکه: جنين چې د مور په نس کې وي چې وجود او غذا اخيستل يې داسې نه ده لکه د مور له نسه چې راووځي. د مور له نسه چې راووځي وجود يې هم قوي شي، عذا يې هم قوي شي. همدارنګه له دُنيا ځخه چې جنت ته لاړ شو نو هلته مو وجود هم قوي کېږي او غذا به هم داسې غذا وي چې يو له بله به مشابه اود دُنيا تر غذا به ښه تلذذ هم ترې اخيستل کېږي. ځکه چې هغه وجود به وجود نفس الامری وي اودا وجود چې دی دا وجود ظلي دی، چې نه په وجود کې دومره قوت شته اونه په غذا کې. نود حق سبحانه وتعالی ﷻ صفات ثمانيه وجود خارجي لري. يوه دا خبره هم شته چې وجود ظلي د عالم ممکن دهغه وجود ظل دی کوم چې حق سبحانه وتعالی ﷻ پکې موجود دی، له دې وجې دا وجود وجود ظلي شو.

دلته که چېرته دا پوښته وشي چې دا وجود که چېرته ظلي شي او اصلي نفس الامری نه شي نو مدار دتکليف ولې پرې مرتب دی ؟ يعنې دوزخ، جنت، دلمانځه او روژې تکليفونه او داسې نور ولې ورته متوجه کېږي ؟ نو په ځواب کې دا ويل کېږي چې : داد الله تعالی ﷻ صُنع ده، دومره اتقان لري چې ترتُب د شرعي امورو پرې راشي، لکه ځرنګه چې په يوه مکتوب کې راغلي دي چې: ساحرانو ( جادوګرانو) په يوه وطن کې يو باغ جوړ کړ نو الله تعالی ﷻ ددوی سحر او د دوی کيفيت ختم کړ او باغ تر ډېره وخته دوام وکړ چې اوس هم باقي پاتې دی. ځکه

دریم تعین یا تنزل د عالمِ ارواح په خلق سره، څلورم تعین یا ظهور یا تنزل په عالمِ مثال سره، پنځم تعین یا تنزل په عالمِ اجساد سره. دغو پنځو امورو ته پنځه ظُهورات، پنځه حضرات، پنځه تنزلات، پنځه تقدسات هم وايي. يعنې داتنزلات مقدس دي، ځکه چې دا تنزلات د الله تعالیﷻ د ذات اقدس دي، نو دوی عالمِ ممکن ته هم ډېر عزت او شرافت ورکوي. ولې چې دوی یې د الله تعالیﷻ تنزلات بولي. مثلاً چې لمر راوخيژي اوپه شعاعو سره يې ستوري پټ شي، نو دوی وايي چې ستوري نشته، يعنې په ماسوی د لمر باندې حُکم د نفی کوي، خودا حکم له دې وجهې کوي چې دلمر سره يې مناسبت او ممارست نشته، استعداد

---

چې د باري تعالیﷻ د صُنع مداخله پکې راغله. اوددوی موهوم وجود ته يې دوام ورکړ. نود ممکن وجودِ ظلي هم د باري تعالیﷻ صُنع ده دوام يې ورکړی دی. قوت يې ورکړی دی او په همدې قوې سره د شرعي امورو ترتب پرې راغلی دی. نو حضرت مجدد صاحب رحمه الله لکه څرنګه چې د اهل ظواهرو او وجوديه وو ترمنځ ميانه رو شو او وايي چې که اهلِ ظواهر په دې خبر شي وجود خارجي يو کامل صفت د حق سبحانه وتعالیﷻ دی نو څرنګه به عدم محض ته چې ممکن دی په کامل صفت دحق سبحانه وتعالیﷻ کې شرکت ورکړي اوکه وجوديه په دې خبر شي چې په دې ظهور خارجي باندې خو مدار د تکليف نه راځي ( مکلف نه وي ) نو دوی به هم قانع شوي وای او ظهور خارجي به يې ظل خارجي بللی وای.

تمت بتوفيق الحی القيوم وبه نستعين.

من افاداتِ شَيخِنَا ومُرشِدِنَا الحاج خليفه صاحب داد محمد صانه الله الصمد.

کمزوری دی نو نفی د ماسوی کوي. نو په دوی هم چې د حق سبحانه وتعالی ﷻ د صفاتو تجلیات غالب شي له ډېره عشقه وايي چې بل هېڅوک نشته او (همه أوست).

او اهل د توحید شهودي چې استعداد یې قوي دی اوله تجلیاتو سره یې ممارست زیات دی نو د لمر د ختلو په وخت کې وايي چې لمر ښکاره دی اود ستورو نفی نه کوي، همدارنګه د الله تعالی ﷻ د ذات اقدس د تجلیاتو د مشاهدې په وخت کې د ماسوی نفی نه کوي او دا نه وايي چې (همه اوست) بلکې د وايي چې (همه ازو ست) یعنې ټول شیان له ده څخه دي، یا ټولو ممکناتو ته ده وجود ورکړی دی.

ددې بل مثال او نظیر په خارج کې داسې دی چې یوه آهنګر یا ښځ چې اوسپنه ډېر وخت د اور په کوري کې کښېښودي، نو چې کله یې راوباسي ټوله اور ګرځېدلې وي، نو اهل دتوحید وجودي وايي چې دا اور دی او اوسپنه نه ده او اهل دتوحید شهودي وايي چې دا اوسپنه ده او اور نه دی، یواځې اور وربانـدې غالب شوی دی. نو اهل د توحید وجودي چې ظاهر او باطن یې ټول د باري تعالی ﷻ انوار ګرځېدلي وي اود انوارو غلبه پرې راغلې وي نو له ډېره عشقه ترې وویل شي چې: (أناالحق). اما اهل د وحدت شهودي چې استعداد یې ډېر قوي دی وايي چې: قلب د حقائقو ممتنع دی، ممکن واجب نه شي کېدلی، لېکن د انسان عالم امر

او عالم خلق دواړه په انوارو د واجب تعالیﷻ مُنَور شوي او د انسان سابق عالم امر او عالم خلق د لباس حیثیت پیدا کړی، نو دانسان ظاهر ممکن دی، څکه صوري مرګ ورته پیدا کېږي او د اهل الله وو باطن د حق سبحانه وتعالیﷻ ذاتي تجلیات دي، نو څکه دهغو په برکت سره باطني حقیقي ژوند ورته پیدا دی او په صوري مرګ سره بیا نه مري.

## یادونه:

وحدتِ وجود د طریقت له شرائطو څخه نه دی، بلکې ځینو اشخاصو ته پیدا کېږي، لېکن باید کوشش وکړي چې زرترزره له دې مقام څخه پورته شي او وحدت شهود ته ورسیږي. اَمّا وحدت شهود د طریقت له شرائطو څخه دی، خود وحدتِ شهود اهل د وحدتِ وجود د اهل په اقوالو اعتبار هم نه کوي او رد هم نه پرې کوي، څکه چې دوی هم اهل الله او دوستان د حق سُبحانه وتعالیﷻ دي او دا قول له دوی څخه د سکر په حالت کې صادریږي. څکه حضرت مجدد صاحب رحمة الله علیه وایي چې: (*نه این کار می کنیم ونه انکار می کنیم*.) یعني نه دا کار کوو چې دوی یې کوي او نه ورڅخه انکار کوو.

او حضرت مجدد صاحب رحمة الله علیه ته په خپله هم په ابتداء کې چې په چُشتیه او قادریه طریقه کې د خپل پلار مُرید شو د وحدت

وجود حالت ورته پيدا شو، خو چې کله په نقشبنديه طريقه کې دحضرت خواجه باقي بالله صاحب رحمه الله مُريد شو نو فی الحال يې د وحدتِ شهود مقام ته عروج وکړ، نو ده ته دواړه حالات ښه معلوم دي، ځکه وايي چې:

(نه اين کار می کنيم ونه انکار می کنيم).

## يادونه:

وجوديه ممکناتو ته خارجي وجود نه مني، بلکې دوی ممکنات الهي ظهورات بولي، لکه په آئينه يا هنداره کې چې سړی خپل ځان ويني نودا د آئينې شکل د انساني شکل ظهور دی، نه د انسان خارجي وجود. او دوی وايي چې وجود د حق سبحانه وتعالی ﷻ د نورو صفاتو غوندې د کمال يو صفت دی، نو په دې صفت کې ممکن لره دخل نشته.

او د علمِ ظاهر علماء کرام بيا ممکناتو ته مستقل خارجي وجود ورکوي او وايي چې: د تکليف مدار په وجود خارجي باندې دی، که چېرته ممکنات خارجي وجود ونه لري نو دوی ته جنت او دوزخ په کوم سبب ورکول کېږي؟ او حضرت مجدد صاحب قدس الله تعالی اسراره بيا (بين البين) دی، نه داسې وايي لکه اهل دتوحيد وجودي، چې ممکناتو ته وجودي ظهور ورکوي. او نه

داسې وايي لکه د علمِ ظاهر علماء چې ممکناتو ته خارجي وجود ورکوي، ځکه دی مبارک وايي چې: نه ممکنات د حق سبحانه وتعالی ﷻ سره په دغه صفت د کمال کې چې وجود دی شریکولای شو اونه داسې کولای شو چې یواځې په خارجي ظهور قول وکړو، ځکه چې د تکلیف مَدار په وجودي دی نه یواځې په ظهور. نو مونږ په ظِلي وجود قائل یو. یعنې ممکنات موجود دي په ظلي وجود سره او حق سبحانه وتعالی ﷻ موجود دی په خارجي وجود سره. اوکه د ظاهر علماء ووايي چې د تکلیف مدار په خارجي وجود باندې دی نه په ظِلي وجود، ځکه چې ظلي وجود داسې دی لکه د لمر وړانګه چې کوم اعتبار نه لري. نو مجدد صاحب مبارک رحمه الله وايي چې: ممکنات ظلي وجود لري، لیکن دممکناتو دا ظلي وجود د رب تعالی ﷻ صُنع دی اود حق سبحانه وتعالی ﷻ صُنع متقنه او مستحکمه ده. نو ممکنات له هغه اتقان ظاهر سره هم څه موافقه لري، چې په ممکن کې د تکلیف مدار ضرور دی. او له وجودیه وو سره هم څه موافقه لري چې ممکنات له حق سبحانه وتعالی ﷻ سره په صفت د کمال کې شریک نه دي، چې مستقل وجود ولري، یعنې شهودیه مبارکان کوم چې قوي استعداد لري؛ واجب، واجب بولي او ممکن، ممکن بولي، لیکن چې کله د ممکن کامله تصفیه او تزکیه راشي نو عالمِ امر یې د باري تعالی ﷻ د ذاتي تجلیاتو مظهر ګرځي او عالمِ خلق یې

د حق سبحانه وتعالیﷻ د صفاتي تجلیاتو مظهر ګرځي. او سابق عالم امر او عالم خلق یې د لباس حیثیت پیدا کوي، اما د دوی مقام د وجودیه وو تر مقام ډېر لوړ او پورته دی، ځکه د ممکن او واجب ترمنځ تمیز کولای شي او وجودیه چې تمیز نه شي کولای نو ځکه ماسوِیٰ له واجب تعالیﷻ څخه نور شیان نفی کوي.

او حضرت مجدد صاحب مبارک رحمة الله علیه وایي چې: مونږ ددوی په قول عقیده هم نه لرو او بد هم ورته نه وایو، ځکه چې په مسلمانانو کې له ډېرو لویو اشخاصو څخه دا اقوال صادر شوي. مثلاً فرعون بدبخت چې دا وویل چې: (اَنَا رَبُّكُمُ الأَعْلَى) نو کافر شو، ځکه چې ده خپل ځان ته خدای وویل. او منصور حلاج رحمة الله علیه چې (اناالحق) وویل نو کافر نه دی، بلکې په مسلمانانو کې لوی بزرګ دی، ځکه چې هغه له کاملې تزکیې وروسته د الله تعالیﷻ ذاتي تجلیات په خپل ځان کې لیدل نو په هغو تجلیاتو یې حکم کاوه، چې (اناالحق)، نه په خپل ځان باندې او خپل ځان یې د الله تعالیﷻ په عشق کې محوه کړی و. دلیل یې دادی چې: ده په شپه او ورځ کې الله تعالیﷻ ته زر رکعته نفلونه کول، که چېرته یې خپل ځان الله بللی نو لمونځ یې بیا چاته کاوه؟

له ده مبارک څخه چا د حقیقي عشق په باره کې پوښتنه وکړه نو ده ورته وویل چې: صبا ته به د عشق اوله (لومړنی) مرحله ووینې دوهمه ورځ به د عشق اوسطه مرتبه ووینې اودریمه ورځ به د

عشق آخري مرحله او مرتبه ووينې. نو صبا ته چې د ظاهر علماوو
په ده باندې د مرګ فتوی وکړه او دی مبارک يې په دار وځړاوه او
خلکو په تيږو باندې سنګسار کړ، مخ مبارک يې وينې شو، نودا
وينې يې په خپل مخ باندې ومښلې، چې څوک دا ونه وايي چې:
دی مړ شو او اندامونه يې تک زېړ دي اوداچې زه خپل معشوق
تـه پـه سـور مـخ ورشـم. او وينـې يـې چـې پـه هرځـای لګېـدلې د (
اناالحق) نعرې يې شروع کړې. دا د عشق اوله درجه وه.

بله ورځ بيا علمـاء راټـول شـول چـې اوس خو نوره فتنـه راپورتـه
شوه چې غوښې او وينې يې د (اناالحق) نعرې وهي، نو حکم يې
وکړ چې غوښې يې راټولې کړئ او اور پرې بل کړئ، کلـه يـې چـې
اور ورواچاوه او غوښې يې ايرې شوې نو ايـرو د (انـاالحق) نعـرې
شروع کړې. دا د عشق دوهمه درجه وه. بيا دعلم ظاهر علماء سره
راټـول شـول او حکـم يـې وکـړ چـې: اوس يـې دا ايـرې د بغـداد د
(دجلې) سيندته واچوئ! [[ ده مبارک په ژوند کې دا وصيت کړی
و چې: کله زما ايرې د دجلې درياب تـه وغورځـول شـي نـو دريـاب
په جوش راځي او بغداد غرقوي، نو بيا بـه زما چوپانـه ورتـه شفيع
کړئ! ]] کله يې چې هغـه ايرې د دجلـې سـيند تـه وغورځـولې نـو
سيند داسې په جوش راغی چې نژدې و چې ټول د بغداد خلک يې
لاندې کړي وای، نو هغه مُريد يې (چاته چې منصور حلاج وصيت

کړي و ) دده مبارک چوپانه راواخیسته او دریاب ته یې شفیع
کړه، دریاب بېرته په خپل حال شو. دا دریمه درجه د عشق وه.

کله چې خلکو دی سنګسار کاوه نو شبلي رحمه الله هم د علماوو
له فتوی سره سم دی مبارک په یوه ګُل وویشت ، منصور حلاج
ورته نعرې کړې چې: ای شبلي ! له ټولو ډبرو ستا په ګُل باندې
ډېر دردمن شوم. ځکه چې ته خو اهلِ باطن یې او زما په کیفیت
پوهه یې ! وروسته دی مبارک چا په خوب ولیده او ورته یې
وویل چې: څه حال دی ؟ ده مبارک ورته وویل چې: هغه خلکو چې
زه په ډبرو وویشتم هغوی هم خدای تعالی ﷻ جنت ته داخل کړل
،ځکه چې دوی د شریعت د حکم تطبیق کاوه، او زه او زما اهل او
اتباع یې هم جنت ته داخل کړل، ځکه چې دوی د الله تعالی ﷻ په
عشق کې مست وو اود سکر په حالت کې یې دا خبرې کړېدي.

د اهل وجود د یوه او دوو رئیسانو یعنې ابن العربي او عثمان
مغربي صاحب چې دوی هم د توحید وجودي قائل دي، یو څو
اشعار رانقل کوو، کوم چې د توحید وجودي مغز ترې څرګندېږي:

زدریا موج گوناگون برآمد — زبی چونی برنگ چون برآمد

گهی در کسوت لیلیٰ فرو شد — گهی بر صورت مجنون برآمد

چو یار آمد ز خلوت خانه بیرون — همان نقش درون بیرون برآمد

از آن دریا درین امواج هر دم  هزاران گوهری مکنون بر آمد

يعنې په واقعه کې عاشق او معشوق دواړه رب تعالی ﷻ دی.
مجنون په ليلی کې هم هغه الهي تجليات وليدل څکه پرې عاشق
و.

همدارنګه حضرت عبدالرحمن جامي رحمه الله هم په ابتداء کې له
توحيد وجوديه وو څخه و اودا اشعار يې ويلي دي:

جمال اوست هر جا جلوه کرده  ز معشوقان عالم بسته پرده

ز رویش روی خود اراست لیلیٰ  به هر مویش ز مجنون خواست میلا

دلی که آن عاشق خوبان دل جوست  اگر داند و گرنه عاشق اوست

يعنې مجنون په ليلی مين و، خو په هغو تجلياتو يې مين و چې
حق سبحانه وتعالی ﷻ په ليلی کې ايښي وو. ولې خو (ز رویش روی
خود آراست لیلیٰ) يعنې له ذاته د حق تعالی ﷻ څخه ليلی خپل مخ
ښائسته کړی و، نو له دې حيثيته د مجنون له هر وېښته څخه په
دې باندې عشق راغلی و. بل سالک وايي:

الا تا در غلط نیافتی که گوئی  که از ما عاشقی واز وی نیکوئی

يعنې چې غلط نه شې چې زه عاشق يم او دی معشوق دی،
بلکې عاشق هم الله تعالی ﷻ دی او معشوق هم الله تعالی ﷻ دی.

يعنې په انسان کې چې په يو چا عاشق وي په هغه کې د عشق صفت هم الله تعالی ﷻ ايښی دی او په معشوقه کې چې کوم د کمال صفت دی او د عشق منشاء دی هغه هم الله تعالی ﷻ پکې ايښی دی. نو بايد چې څوک د اهل توحيد وجوديه وو ته بد ونه وايي او څه خبرې پکې ونه کړي. اما دا لازمه ده چې سړی د توحيد وجودي له مقامه بايد ډېر زر تر زره تېر شي.

## يادونه:

دا د توحيد وجودي او شهودي اجمالي بيان و، ترڅو چې نور کتابونه ونه کتل شي او تفصيلي علم يې نه وي حاصل شوی يواځې دې په دې اجمالي بيان سره څوک په دې مسئله کې بيان نه کوي.

داتوحيد وجودي ځينو اشخاصو ته په ابتداء دولايت کې پيدا کېږي. اوددغو اشخاصو په علم يقين کې نزول راځي او علم اليقين د علماء ظاهر هم شته او د وجوديه وو هم شته. خو فرق يې دادی چې د ظاهر د علماوو يقين استدلالي دی او د وجوديه وو کشفي دی.

منصور حلاج د وجوديه وو له جملې څخه و. او په حلاج سره د ده وجه د تسميې دا وه چې حلاج د مبالغې صيغه ده، يعنې ډېر ښه جدا کونکی د دانو له پنبې يا مالوچو څخه

یوه ورځ ده مبارک یوه دکاندار ته وویل چې: لاړ شه زما فلانکی کار وکړه، دا ستا کار چې له پنبې یا مالوچو څخه د تخم یا دانو جلا کول دي، دا کار به زه وکړم، دکاندار دده مبارک په کار پسې ولاړ، دی مبارک پنبې (مالوچو) ته متوجه شو او په دکان کې یې د تخم ټولې دانې له پنبې څخه په توجه جدا کړې. له دې وجې څخه دده مبارک نوم (حلاج) شو.

حضرت خواجه عزیزان رحمة الله علیه وايي چې: که چېرته د حضرت خواجه عبدالخالق غجدواني رحمة الله علیه یو حقیقي فرزند هلته موجود وای چېرته یې چې منصور حلاج په دار خړاوه، نو بیابه هیڅا دی دار ته نه وای پورته کړی، ځکه چې له دې مقامه څخه به یې دی زر تېر کړی وای. او وحدت شهود اود نبوت کمالاتو ته به یې رسولی و. بیا به له ده څخه داخبره یعنې (انا الحق) نه صادرېدله.

همدارنګه بایزید بسطامی رحمة الله علیه څومره لوی شخصیت و؟ هغه هم په لومړي سر کې په وحدت وجود کې عروج درلود اودا الفاظ ترې صادر شوي وو، چې (سبحانی ما اعظم شانی) خو بیا له دې مقام څخه تېر شو.

سلطان محمود غزنوي رحمة الله علیه چې د سومنات په فتوحاتو پسې روان شو، کله چې خرقان ته ورسېده نو چا ورته وویل چې: دلته یو ملنګ دی، که هغه ووینې او دعا ور څخه واخلې نودا به درته

ډېره فائده وکړي سلطان محمود خپل قاصد ور ولېږه چې ملنګ ته ووایه چې د اسلام بادشاه دې غواړي او له تاڅخه دُعا غواړي. ملنګ چې ابوالحسن خرِقاني رحمة الله عليه و، ورته وویل چې هغه بادشاه دی اوزه ملنګ یم، د بادشاه او ملنګ ترمنځ هېڅ مناسبت نشته، زه نه درځم. ته خپل کار کوه اوزه به خپل کار کوم. بیا سلطان صاحب خپل وزیر ورولېږه چې ملنګ ته ووایه چې: الله تعالی ﷻ فرمایي: «أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَأُولِي الأَمْرِ مِنْكُمْ» یعنې که ته د شریعت تابع یې نو ددې مبارک آیت له مخې د امیر اطاعت وکړه.) ده مبارک ورته وویل چې: بادشاه ته ووایه چې زه په (اطیعوالله) کې دومره مستغرق یم چې تراوسه لا (اطیعواالرسول) ته نه یم رسېدلی. او ته خو لا په دریمه درجه کې یې.

نو په آخر کې سلطان محمود غزنوي په خپله ورغی اوله څه جریان څخه یې وروسته ورته وویل چې: ماته د بایزید بسطامي رحمة الله عليه څه قصې بیان کړه او بیا راته دُعا وکړه.

څرنګه چې بایزید بسطامی رحمة الله عليه د خرقاني رحمة الله عليه پیر هم و نو ورته یې وویل چې: چا بایزید بسطامی رحمة الله عليه لیدلی وای هغه به الله تعالی ﷻ له ازلي شقاوت څخه خلاص کړی وای. سلطان صاحب ورته وویل چې: دا خو دې له انبیاوو علیهم السلام څخه هم لوړه درجه ورته ورکړه. او آن تردې پورې چې له حضرت نبي

کریمﷺ څخه دي هم بهتر کړو. څکه چې هغه مبارکﷺ خو مشرکينو هم ليدلی و، خو بيا يې هم ايمان ورباندې رانه ووړ. او له ازلي بدبختي څخه مشرکين خلاص نه شول. نو ابوالحسن خرقاني رحمة الله عليه ورته وويل چې: (توحدِ خود را بشناس) يعني ته خپل حد وپېژنه. او پورته مه ځه چې ژوند به دې خراب شي. حضرت رسول اللهﷺ چې چا په حقيقت سره نه و ليدلی نو هغه يې له رسالت څخه منکر و او ويل به يې چې: (مَالِهٰذَا الرَّسُوْلِ يَأْكُلُ الطَّعَامَ وَيَمْشِيْ فِي الْأَسْوَاقِ) لکه ابوجهل، ابواللهب او داسې نور. اوچاچې په حقيقت سره ليدلی و لکه صحابهٔ کرامو رضي الله عنهم نو هغوی له ازلي شقاوت څخه خلاص شول.

له دې وروسته يې سلطان صاحب ته دعا هم وکړه او خپله خِرقه مبارکه يې هم ورته ورکړه او ورته يې وويل چې: کله ډېر تکليف درباندې راشي، نو زما دا خِرقه به الله تعالیٰﷻ شفيع کړې! نو کله چې د سومنات له بُت سره نژدې جنګ ډېر سخت شو، نو سلطان صاحب هغه خرقه مبارکه الله تعالیٰﷻ ته شفيع کړه. آخر الله تعالیٰﷻ فتح ورکړه او بُتان يې ټول غزني ته راوړل.

نو بايزيد رحمة الله عليه داسې شخصيت و چې دده په يوې بلې قيصې کې راځي چې: يوې بزرګې ښځې خپل ځان په خوب کې وليده چې: عرش ته ختلې ده او ګوري چې د ځمکې په ټول مخ ګلان

راشنه شويدي او په هري پاڼې يې ليکلي دي چې: (بايزيد ولي الله).

نو لنډه داچې د بايزيد بسطامی رحمة الله عليه غوندې عظيم شخصيت هم په ابتداء کې د وحدت وجود قائل و. خو بيا يې له دې مقام څخه د توحيد شهود مقام ته عبور کړی و

مطلب داچې څوک بايد په دوی مبارکانو پسې بد ونه وايي، بلکې د خپل ځان د تزکيې او تصفيې کوشش دې کوي او دغې تزکيې او تصفيې ته شاه نقشبند صاحب رحمة الله عليه (سفر در وطن) وايي.

الله الله الله

# د حضرت شاه نقشبندصاحب رحمة الله علیه د اطلاقاتو وضاحت

له حضرت شاه نقشبند مبارک څخه چا پوښتنه وکړه چې: ستا د طریقې بناء په څه شي ده ؟ ده مبارک ورته په ځواب کې وویل چې: (هوش دردم، نظر بر قدم، خلوت در انجمن، سفر در وطن، یادداشت، یاد کرد، وقوفِ زمانی، وقوفِ عددی ووقوف قلبی).

د شاه نقشبند رحمة الله علیه د دې مبارکو اطلاقاتو توضیح او تفصیل په لاندې ډول دی:

*هوش دردم*: (آګاهي او حضور په ساه کښلو کې).

حضرت جامی رحمة الله علیه فرمايي چې: د هر انسان او حیوان په ساه کښلو کې ذکر د الله تعالی ﷻ جاري دی، ځکه چې ساه ښکته او پورته ځي نو ضمیر د (هُو) پکې راځي. اصلي او واقعي نوم دالله تعالی ﷻ همدا (هُـ) دی. الف اولام د تعریف له پاره پکې راغلي دي او ادغام د زيات تعریف له پاره دي، نودا (هُ) چې په ساه کې ښکته اوپورته کېږي دا نوم د الله تعالی ﷻ دی خو لیکن ذکر هغه

دی چـې ( هـوش در دم ) وي. يعنـې پـه سـاه کـښلو کـې آګـاهي اوخبرتيا. بلکې د اهل الله وو د ساه کښلو په منځ کې هم حضور وي.

**نظر بر قدم:** نظر بر قدم دې ته وايي چې: هرچېرته چې د اهل الله وو قدم ولګېږي هلته يې نظر هم لګيږي، تردې پورې که په عـرش باندې يې قدم ولګېږي نو نظر يې هم هلتـه لګيـږي او نظر او قـدم سره لازم دي.

شعر:

*کم زده نی ہمدم ہوش دم　　　　در گذشتہ نظرش از قدم*

يعنې ساه يې کمه کښلې ده چې حضور يې نه و اونه يې نظر تېر شوی له قدمه.

*بس کہ بہ سرعت کردہ سفر　　　　باز نماندہ قدمش از نظر*

يعنې داچې ډېر په تلوار يې سفر کړی دی قدم يې له نظره نه دی پاتې شوی.

**خلوت درانجمن** : دې ته وايي چې په ظاهر کې له خلکو سره وي اوپه باطن کې له الله تعالیٰ ﷻ سره وي، چې کائن وبائن، واجد و فاقد، قريب او بعيد هم ورته وايي.

شعر:

از بیرون در میان بازارم      واز درون خلوت است با یارم

از درون آشنا شو وز بیرون بیگانه شو

این چنین زیبا روش کم می بود اندر جهان

**سفر در وطن** : دې ته وايي چې: په خپل بدن کې د عالم امر اوعالم خلق په تصفيې او تزکيې کې کوشش وکړي او له ذميمه اخلاقو څخه حميده اخلاقو ته انتقال وکړي.

**یاد کرد**: دې ته وايي چې: کله حضور وي او کله بې حضوري.

**یادداشت**: دې ته وايي چې: حضور دائمي وي، يعنې په (ياد کرد) کې حضور په تکلف سره پيدا کېږي اوپه (يادداشت) کې حضور د ذاکر صفت راسخه وګرځي.

**وقوف زمانی**: دې ته وايي چې: صوفي هميشه له خپلو احوالو څخه اګاه وي، چې آيا دده دا حال موجب د شُکر دی اوکه موجب د معذرت دی. حضرت خواجه يعقوب چرخي رحمة الله عليه فرمايي چې: ما ته به حضرت شاه نقشبند رحمة الله عليه د بسط په وخت کې د شکر

ایستلو حکم کاوه اود قبض په حالت کې به یې د استغفار کولو حکم کاوه.

**وقوف عددی:** دې ته وایي چې: ذاکر د نفیی او اثبات په وخت کې د عدد یعنې شمېر رعایت کوي او ساه په طاق عدد باسي. یعنې په درې، پنځه تر یو ویشتو پورې.

**وقوف قلبی:** دې ته وایي چې: ذاکر خپل زړه ته متوجه وي کوم چې تر کینې تي درې ګوتې لاندې دی او همیشه یې په ذکر مشغول ساتي. او غفلت ته یې نه پرېږدي.



# د مشرب بیان

د شهودي صوفياء کرامو او کاملو عرفاوو په نزد حقیقت د ممکن عدم دی خو هغه عدم چې د باري تعالی ﷻ د یوه صفت له انعکاس سره ګډ دی. ددې تفصیل دادی چې الله تعالی ﷻ له ازله په اتو صفاتو چې له: علم، سمع، بصر، کلام ، قدرت، اراده ، حیات او تکوین څخه عبارت دی ؛ متصف دی. اودا ټول دکمال صفات دي، خو د ( تُعرَفُ الاشياءُ بِاضدادها) له وجې له دغو صفاتو سره ددوی دمقابل لحاظ هم کېږي. مثلاً د علم کمال له خپل مقابل څخه معلومېږي چې عدم علم دی چې له هغه څخه په جهل سره تعبیر کېږي اود حیات مقابل عدم حیات دی چې تعبیر یې په موت سره کېږي، د قدرت مقابل عدمِ قدرت دی چې تعبیر یې په عُجز سره کېږي. یعني ددغوصفاتو په مقابل کې یې انعکاس هم پروت دی. مثلاً په عدم علم کې تجلی،نمونه او ظل د علم پروت دی. همدارنګه په عدم قدرت کې تجلی او ظل دقدرت پروت دی. اوس که عدم د عَمرو یا عدم د بَکَر په علم د الله تعالی ﷻ کې فرد وي له عدم د علم څخه نو په عدم د علم کې خو

تجلي او انعکاس دعلم پروت و نو د عَمرو یا بَکر په عدم کې هم انعکاس دعلم پروت دی. نو عدم د عمرو مخلوط دی له عدم د علم او انعکاس د صفت سره. اولکه چې د الله تعالی ﷻ اراده دده له تخلیق سره متعلقه شوه او موجود یې کړ نو په وخت د وجود کې یې هغه صفت دده مشرب شو. یعنې چې عدم دده له عدم د علم څخه فرد و، نو وجود دده له وجود د علم څخه فرد دی. یعنې مبدء د فیض دده پس له وجوده دده صفت د علم د حق سبحانه وتعالی ﷻ دی، نو په ده باندې فیوضات له صفته دعلم څخه راځي. دغه صفت د علم ته دده مشرب ویل کېږي. او که د چا عدم فرد وي له عدم دقدرت څخه نو په وخت د وجود دده کې مبدء د فیض دده صفت د قدرت دی. وعلی هذا القیاس.

او په صوفیه وو کې مشهوره خبره داده چې: (لطیفۀ قلبي) د حضرت آدم ؑ تر قدم لاندې ده او مبدء دفیض یې دتکوین صفت ده. او (لطیفۀ روحي) د حضرت نوح ؑ او حضرت ابراهیم ؑ تر قدم لاندې ده او مبدء د فیض یې صفت د علم ده، خود حضرت نوح ؑ دعلم صفت اجمالی دی اود حضرت ابراهیم ؑ د علم صفت تفصیلي دی. او (لطیفۀ سرِی) دحضرت موسی ؑ تر قدم لاندې ده او مبدء دفیض یې د کلام صفت ده. او (لطیفۀ خفی) د حضرت عیسی ؑ تر قدم لاندې ده او مبدء دفیض یې د قدرت

صفت ده. او (لطيفۀ اخفى) دحضرت محمد مصطفیﷺ تر قدم لاندې ده او مبدء دفيض يې د علم د صفت شان دی.

مـونږ مخکـې وويـل چـې: د شـيوناتو مرتبـه د عـين صـفاتو لـه مرتبې څخه فوق ده.

اوس نور خلک چې دي څوک به د حضرت آدمؑ په مشرب وي، څوک به دحضرت نوح ؑ يا حضرت ابراهيمؑ په مشرب وي، څوک به دحضرت موسیؑ ، څوک به د حضرت عيسیؑ ، څوک به د آنحضرت محمد مصطفیﷺ په مشرب وي. اوددې خبرې چې فلانی په مشرب د فلاني دی. معنا داده چې: د حضرت آدمؑ په عدم کې تجلي او انعکاس د صفت تکوين و اوپه وخت د وجود کې مبدء د فيض دده همدا صفت دتکوين شو، نو دهرچا عدم چې فرد و له عدمه د تکوين څخه په وخت د وجود دده کې مؤثر او مبدء د فيض يې صفت د تکوين ده . اوپه دې کې لـه حضرت ادمؑ سره شريک دی، نوځکه داسې ويل کېږي چې دی په مشرب د حضرت آدمؑ دی. و هکذا نور هم داسې دي. نو چې دکوم صفت انعکاس دده په عدم کې و اوس يې دوجود په وخت کې هغه صفت دده مشرب اود فيض مبدء ده. نو مشربونه که د انبياوو عليهم السلام دي يا د نورو خلکو ټول (الستی) او (ازلی) دي، د سرې په خپل اختيار کې نه وي. او د انبياوو عليهم السلام اونورو خلکو فرق دادی چې انبياء عليهم السلام خو هم

ممکن دي، لېکن د انبیاوو علیهم السلام صفت یې په منزله د ( مادې) او( هیولی ) ده، یعنې انعکاس او تجلی دصفت په دوی کې قوي او عدم ددوی ضعیف دی، نو له دې وجهې انبیاء کرام علیهم السلام معصوم دي اود نورو خلکو عدم په منزله د هیولی ده او انعکاس دصفت یې په منزله د صورت ده، نو عدم ددوی قوي او انعکاس د صفت یې ضعیف دی، نو نورخلک په اصل کې معصوم نه شول. لېکن په دغو څلورو طریقو سره د ذکر په وسیله بېرته انعکاس د صفت قوي کېږي اوعدم ددوی ضعیف کېږي. بیا (ولي ) ترې جوړ شي، حتی هغه انعکاس د صفت یې په منزله دهیولی شي او عدم دده په منزله د صورت شي او بیا د هغه خپل مشرب فیوضات پکې ډېر شي، نو ځکه ویل کېږي چې:

*زرویش روی خود آراست لیلیٰ به هر مویش زمجنون خواست لیلیٰ*

بیا نو ټول بدن دهغه شخص چې انعکاس د صفت پکې قوي شوی وي په الله تعالی ﷻ باندې عاشق شي اوبیا چې کله اولیاوو ته مرګ راځي دعدم خوا یې ضعیفه شي اودا تجلی دصفت نوره هم پسې قوي شي، ټول وجود یې ونیسي او حیات حقیقي ورته پیدا شي، بیا دغه صوري مرګ هغه حقیقي حیات نه شي لرې کولای، ځکه چې حقیقي حیات د باري تعالی ﷻ د صفت انعکاس دی اود باري تعالی ﷻ صفات قدیم دي، نو انعکاس یې

هم له صفاتو سره قدیم دی. مثلاً د لمر وړانګه له لمر سره لازمه ده، هر چېرې چې لمر وي نو وړانګه اوړنا به هم ورسره وي، همدارنګه د صفت انعکاس او تجلی له صفت سره لازمه ده، نو چونکه صفات قدیم دي انعکاس یې هم په وجود د انسان کې د تل له پاره وي اوپه صوري مرګ سره حقیقي حیات نه شي زائلېدلی.

مولانا صاحب فرمایي:

*صد ہزاران سال بودم در مطار — ہمچو ذرات ہوائی اختیار*

یعنې سل زره کاله زه په عالم ارواح کې په الوتو کې وم بې اختیاره.

*فراموشم شده آن وقت حال — یادماہست درخواب ارتحال*

یعنې دعا لم ارواح هغه ژوندمې هېر دی خوکله کله په خوب کې هغه ارتحال راته یاد شي ـ

دلته یوه ډله سابقان بولي اوداهغه ډله ده چې دعالم ارواح حالت یې یاد وي اویوه ډله ناسیان بولي اوداهغه ده چې دعالم ارواح حالت اوکیفیت یې هیر وي اوداډله چې ناسیان یې بولي له سابقینو څخه فوق دي څکه چې له دوی څخه بیا نوردنیاوي

شیان هم هیریږي اوبیرته دعالم ارواح اودالله تعالی ﷻ طرف ته رجوع کوي .سالک وايي:

میر هم زین چهار میخ وچهار شاخ    می جهم در مسرح جان زین مناخ

یعنې ځان خلاصوم له دغو څلورومیخونو څخه چې عنا صر اربعه دعالم خلق دي اوخپل اصل ته چې عالم ارواح دی عروج کوم اوپه خپل اصل کې محوکېږم. داخطاب روح خپل ځان ته کوي یعنې دعالم امر لطیفې ټولې له خپل وطن څخه چې عالم ارواح دي او مرکزیې فوق العرش دی مسافرې دي اوعالم خلق پرې غالب دی دوی مغلوبې دي، نو روح وايي چې زه داوښانو له دې شپاله څخه بیرته خپلې چراګاه ته ځم چې عالم ارواح دی بیانو داضافي صفاتو،ذاتي صفاتو،شیوناتو ، اعتباراتو او بیا دوصل عُریان طرف ته ترقي کوي او په دې وخت کې بیاعالم امر غالب شي اوعالم خلق مغلوب شي ـلکه دایو قانون دی چې ( ان الملوك اذادخلواقرية افسدوها وجعلوا اعزة اهلهااذلة ) نوچې کله عالم امر غالب شي دنفس ناطقه سلطنت ختمیږي بلکې همدا نفس نا طقه دخان تابع کوي چې هغه هم بیاعروج کوي دحقا ئقود وجوب خواته. شعر

هیچ کس راتا نگردد اوفنا    نیست ره در بارگاه کبریا

يعني ترڅو پورې چې سړي ماسوى الله له خيال څخه نه وي ايستلی اوفناءشوی نه وي دربار درب ته نه شي رسيدلی. شعر

هست معراج فلک این نیستی عاشقان را مذہب ودین نیستی

يعني عالم حقيقت ته چې دحق سبحانه وتعالیٰ ﷻ تجليات دي عروج اوختل تر هغه پورې ممکن نه دی چې نيست شوی اوفناء شوی نه وي اودعاشقانو مذهب څکه دانيستي ده چې يووار به فناء راځي بيا به بقاء پيدا کيږي.



# د اولیاوو قسمونه

## اولیاء په دوه قسمه دي:

(۱) مجذوب سالک. (۲) سالک مجذوب

مجذوب سالک هغه ته وايي چې له محبوبانو څخه وي اوسلوک يې هم تمام کړي وي. اوسالک مجذوب هغه ته وايي چې سلوک يې تمام کړي وي خوله محبوبانو څخه نه وي اوسلوک دعالم امر او عالم خلق داجزاءعشره اود هیئت وحداني تصفيه اوتزکيه ته وايي. اودمجذوب سالک اوسالک مجذوب تر منځ دومره فرق دی لکه دزمکې اواسمان تر منځ. شعر

آسمان نسبت بہ عرش آمد فرود　　گرچہ بس عالی است پیش خاک تود

يعنې اول اسمان په نسبت سره عرش ته اګر که ډېر ښکته دی خو په نسبت سره زمکې ته ډېر عالي دی.

نو اوله ډله چې محبوبان دي داسې نظير لري دوهمې ډلې ته لکه عرش په نسبت سره اسمان ته. محبوبين چې سلوک يې هم تمام کړي وي په مشرب درسول الله ﷺ سره دي. نبي کريم ﷺ دحق

سبحانه وتعالی ﷻ محبوب دی. نو هر څوک چې دده په مشرب وي هغه هم له محبوبینو څخه دی. حضرت شاه نقشبند صاحب قدس سره وایي چې:

(ما محبوبانیم، ما فضلیانیم، ما مرادانیم، مرا به فضل خود قبول کرده.

شعر:

آنرا که در پذیرفت الله بلاعله او را چه حاجت آید رنج چار چله

یعنې څوک چې له محبوبانو څخه وي هغه نوروشیانو ته څه حاجت لري او د امحبوبیت هم ازلي دی یعنې داولوالعزموانبیاوو سره په مشرب کې اشتراک هم ازلي دی. نور نو د مشربونو بیان مخکې تېر شوی دی. چې د انبیاوو علیهم السلام مشرب په خپله صفات دي اود اولیاوو مشرب د صفاتو ظل دی. اود مشرب تعین په څلورمې مراقبې کې راځي، چې تول اسماء الله په لطائفو باندې تاووي، یعنې ګرځوي. نو په کومې لطیفې کې چې چاته کیفیت پیدا شي هغه د هغه مشرب دی. او ځینې خلک وایي چې په کوم اسم کې چې کیفیت پیدا شي هغه اسم یې مشرب دی. دا خبره صحیح نه ده، بلکې اسماء د مشرب د تعین سبب دی. چې په کوم صفت سره په کومې لطیفې کې کیفیت پیدا شي هغه لطیفه چې د هر نبي تر قدم لاندې وي د هغه په مشرب کې دا سړی

هم شریک دی او چې کله فناء او بقاء ددې سرې په خپل مشرب کې راشي نو بیا داسې مقام ته رسیږي.

مولانا صاحب رحمة الله علیه وایي:

ذرهٔ کو محو شد در آفتاب    جنگ او بیرون شد از وصف حساب

چون ز ذره محو شد نفس نفس    جنگش اکنون جنگ خورشید ست وبس

یعنې کله چې ذره د لمر په وړانګه کې محوه شي نو له ذرې سره جنګ بیا له لمر سره جنګ دی.

همدارنګه فناء فی الصفات، فناء فی الله ، فناء په تجلیاتو د باري تعالی ﷻ کې داسې مثال لري لکه محو کېدل د ذرې په لمر کې، نو جنګ له داسې شخص سره چې فناء فی الله وي په حقیقت کې له الله تعالی ﷻ سره جنګ دی. ځکه الله تعالی ﷻ هم په حدیث قُدسي کې فرمایي: ( مَنْ عَادَلِيْ وَلِيًّا فَقَدْ آذَنْتُهُ بِالحَرْبِ ) . او دا فناء فی الله داسې نه ده چې ممکن له ممکن والي ځخه العیاذ بالله خارج شو، او بل وجود ورکړل شو. ځکه چې د حقائقو قلب ( اوړېدل را اوړېدل ) خو ممتنع دي، بلکې ددې معنا داده چې د باري تعالی ﷻ د ذات په تجلیاتو کې یا د صفاتو په تجلیاتو کې محو شو، یعنې په هغو عاشق شو.

رفت از وی جنبش طبع سکون    از چه از إنَّا إلَیهِ رَاجِعون

يعنې له دغې ذرې څخه هغه طبع، سكون اود طبعيت آرامې ولاړه، له څه وجهې ولاړه ؟ له دې وجهې چې مونږ د الله ﷻ يو او ده ته رجوع كوونكي يو.

يعنې دا شخص هم د باري تعالى ﷻ په تجلياتو كې داسې محو شي چې خپل طبعي خواهشات، حركات، سكنات يې ټول ختم شي اود باري تعالى ﷻ تجليات پرې غالب شي، بيا نو دا شعر پرې صادقيږي چې:

هین چواسرافیل وقت اند اولیاء　　　مرده راز یشان حیات است ونما

يعنې اولياء كرام د اسرافيل ؑ حيثيت لري، په دې كې چې لكه څرنګه چې د اسرافيل ؑ په شپېلۍ سره مړي را ژوندي كېږي همدارنګه د اولياء كرامو په واسطه سره مړه زړونه را ژوندي كېږي او ترېيه اخلي.

شعر:

جانهای مرده اندر گور تن　　　بر جهد ز آواز ایشان در کفن

يعنې دا زړونه چې دانسان په بدن كې داسې پټ دي لكه په قبرونو كې مړي، د اولياء كرامو په توجه سره ددوى په آواز سره دننه په كفن كې ژوندي كېږي، اود الله ﷻ په ذكر مشغوله كېږي

اود مرګ او خوب غفلت ترې زائلیږي او بیا دا کیفیت ورته پیدا کېږي چې: (بِي يَسمعُ وبِي يبصرُ وَبِي يَمشِي).

شعر: گفتهٔ او گفتهٔ الله بود گرچه از حلقوم عبدالله بود

یعني دا مړه زړونه په واقعیت کې الله تعالی ﷻ ژوندي کوي، اګر که په ظاهره د مشائخو کرامو په واسطه سره دي. ځکه چې ژوندي کول د الله تعالی ﷻ کار دی.

شعر:

مابه بحر نور خود راجع شدیم وز رضاع اصل مسترضع شدیم

لطائفې وایي چې مونږ د خپل نور په بحر کې مستغرقې شو چې له عرشه فوقې دي اود اصلي تي ورکوونکي څخه برخمن شو. ځکه مولانا صاحب فرمایي چې: شعر:

در فروع راه ای مانده ز غول لاف کم زن از وصول ای بی وصول

د ظاهر علماوو ته خطاب کوي چې: ای له لارې نه د شیطان د دوکې په وجهه پاتې شویه! په قاضي او مطول باندې لاپې مه وهه چې څومره لوی عالم یم، ځان درته لوی ښکاریږي، ځکه چې مطلب ته نه یې رسېدلی ای بی وصوله. یعني له علم څخه اصلي مطلب د الله تعالی ﷻ رضاء ده او هغه یواځې په علم ظاهر نه پیدا

کېږي، ترڅو پورې چې فناء او بقاء درته نه وي حاصله شوي، ځکه چې دعلم ظاهر ثمره علم استدلالي ده اوپه استدلال سره سرې د صفاتوو شيوناتو او اعتباراتو تجلياتو ته او ذات بحت د باري تعالی ﷻ ته نه شي رسېدلی. له دې وجهې حضرت مولانا صاحب رحمة الله عليه فرمايي:

گر به استدلال کار دین بدی    فخر رازی راز دار دین بدی

پای استدلال پا چوبین بود    پای چوبین سست وبی تمکین بود

نو طالبانو ته په کار دي چې يواځې دې په علم ظاهر اکتفاء نه کوي، بلکې په علم باطن کې دې هم کوشش کوي، ترڅو په عمل کې اخلاص ورته پيدا شي.

## حکايت:

يو طالب العلم چې ښه ذکي هم و او کتابونه يې هم خلاصېدو ته نژدې شوي وو، چې همدا طالب بيا وروسته په اولياء کبير سره يادېږي. ددغه طالب له حضرت عبدالله احرار رحمة الله عليه سره څه وخت تعلق راغی اوپه علم باطن کې څه رُشد ورته پيدا شو اود علم ظاهر استاد ترې پاتې شو، نو کله به چې د علم ظاهر استاد وليده نو بدې او بېکاره خبرې به يې ورته کولې، چې ښه طالب وې او اوس صوفيانو ته ولاړې، خپل کمال درڅخه پاتې شو او صوفي

شوې. هر وخت به یې ورته دا پیغورونه او طعنې ورکولې. بلـه ورځ اولیـاء کبیـر ورتـه وایـي چې: استاده! د هر مې مـه تنګوه! پـه علـم ظاهر کې یـواځې دومره کمـال هم نشته چې پـه انسـان کې الهـي خشیت پیدا کړي. او که داسې نه وي نو تـا نـن شپه ولې لـه پردۍ ښځې سره بدعملي وکړه !؟ ته نن شپه چېرته وې ؟ نو استاد یې شرمنده او خِجل شو.

همدارنګـه حضرت ابراهیم بـن ادهـم رحمه الله تـه هـم ځینـو خلکـو پېغورونه او طعنې ورکولې چې بادشاهي دې پرېښوده او ملنـګ شوې اود ملنګانو په شان ګرځې ! ده مبارک یـوه سـتن دریـاب تـه ور واچوله او ماهیانو ته یې وویل چې: پام کوئ ! زما ستن درځخه ورکه نه شي ! او بېرته یې راته راوړئ! ټولو ماهیـانو د زرو ستنې په خوله کې ورته ونیولې او ورته یې راوړې . ده مبارک ورته وویـل چې: زه خپله ستن غواړم. په آخر کې یو بـل مـاهی راغـی او ده تـه یې خپله ستن راوړه. یعنې حضرت ابراهیم بـن ادهـم رحمه الله دوی تـه دا وروښودله چې اصلي بادشاهي داده چې یـواځې انسانان نـه بلکې ماهیـان او نـور حیوانـات دې هـم بادشـاهي ومنـي. اودا پـه ملنګي اود الله تعالی ﷻ په دوستي کې پیدا کېږي ، نه د دنیـا پـه بادشاهي کې.

نو مقصد دادی چې: یـواځې پـه علمِ ظاهر باندې بایـد قناعـت ونه شي، بې شکه چې علمِ ظاهر مُعِد او سبب د علمِ باطن دی،

لېکن مقصد بل شی دی، چې هغه د حق سبحانه وتعالی ﷻ د صفاتو د تجلیاتو حصول دی، کوم چې وصلِ مطلق ورته وایي اویاد حق سبحانه وتعالی ﷻ قُرب بلا کیف دی، چې وصلِ عُریان ورته وایي، بلکې دا شیان هم مطلوب نه دي، لکه په اول مکتوب شریف کې چې مونږ وویل چې: حضرت مجدد صاحب رحمه الله فرمايي چې: «**علوم و معارف احوال و مواجید که صوفیاء را دست میدهد نه از مقاصد اند از جمیع اینها در گذشته و به مقام رضاء حق سبحانه وتعالی باید رسید**». یعنې علمِ ظاهر او باطن یو هم اصلي مطلوب نه دی، بلکې دوی یواځې مطلوب ته مُعِدات دي چې هغه د حق سبحانه وتعالی ﷻ رضاء ده.

الله الله الله

# د مکتوباتِ شریف د څلورم مکتوب وضاحت

د مکتوبات شریف په مکتوباتو کې دا یو مشکل مکتوب دی . په دې مکتوب کې دهغه سخت ځای حاصل دادی چې: مشرب د آنحضرت ﷺ چې حقیقت اولی هم ورته وایي قابیلت د ذات باري تعالی ﷻ دی شان د علم لره اود نورو انبیاوو علیهم السلام مشرب قابلیت د ذات دی صفاتو لره.

اوس قابلیت یو نسبت دی او طرفین په مشاربو د نورو انبیاوو علیهم السلام کې یو ذات دی. بل طرف ته صفات دي اود اهل السنت والجماعت په نزد صفات وجود خارجي لري، نو مبدء د فیض ددوی همدا صفات دي. مثلاً د حضرت آدم عليه السلام مشرب قابلیت د ذات دی صفت د تکوین لره. اود حضرت موسی عليه السلام مشرب قابلیت د ذات دی صفت د کلام لره. همدارنګه د نورو انبیاوو علیهم السلام چې مخکې مو بیان کړل. امّا مشرب د آنحضرت ﷺ قابلیت د ذات دی شان د علم لره. او شیونات تر صفاتو فوق دي، نو مشرب دده فوق دی تر مشرب د نورو انبیاووعلیهم السلام.

یا په بل عبارت د حضرت نبي کریمﷺ مشرب قابلیت د باري تعالی ﷻ د ذات دی شان د علم لره. نو دلته د قابلیت دا نسبت چې په منځ د طرفینو کې دی یو طرف ته یې ذات د حق سبحانه وتعالی ﷻ دی او بل طرف یې شان د علم دی. او شان د علم وجود خارجي نه لري، ځکه چې شان عبارت دی له ذات اقدس څخه د یوه صفت له انتزاع نه. او انتزاعیات وجود خارجي نه لري، نو مشرب د باري تعالی ﷻ ذات ته راجع شو، نو مبدء د فیض د آنحضرتﷺ په خپله دباري تعالی ﷻ ذات دی، نو له دې حیثیته د حضرت محمد رسول اللهﷺ حقیقت په ذاتي تجلیاتو دحق سبحانه وتعالی ﷻ سره خاص شو. اونورو انبیاوو علیهم السلام ته ذاتي تجلیات په طُفیل د آنحضرتﷺ سره پیدا کېږي. او امت ته یې ذاتي تجلیات په مُتابعت د آنحضرتﷺ سره پیدا کېږي. اود نورو انبیاوو علیهم السلام امتونو ته بیا دا نِعمت نشته، ځکه الله تعالی ﷻ دې اُمت ته ( كُنْتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ) ویلي دي. یعنې دا امت په حقیقت کې له نورو امتونو څخه ددې حیثیت له مخې خیر دی چې دوی ته ذاتي تجلیات د حضرت رسول اللهﷺ په متابعت سره حاصلیږي، ځکه دا تجلیات په حضرت نبي کریمﷺ پورې خاص دي. نورو انبیاوو علیهم السلام ته هم دده په طُفیل دا تجلیات رسیږي. او هغه کسان چې په مشرب د نورو انبیاوو علیهم السلام وي ددوی دفیض مبدء او مشرب ظِلال دصفاتو دي

اوځوک چې په مشرب دحضرت نبي کريمﷺ وي دهغه د فيض مبدء او مشرب دعلم د شان ظل دی، او بيا ځيني اهل الله د آنحضرتﷺ حقيقت له حق سبحانه وتعالیﷺ څخه د فيوضاتو په اخذ کې حائل او واسطه بولي او ځيني کامل اهل الله چې يو وار ځوک په واقعي توګه مشرب دحضرت محمدﷺ ته ورسيږي نو هغه د واجب الوجود له ذات څخه بيا پرته له واسطې د حقيقت محمدي څخه د فيوضاتو اخذ په خپله کولی شي.

**پوښتنه** : د حضرت نبي اکرمﷺ متابعت خو فرض دی ، نو څنګه محمديﷺ حقيقت حائل نه شي جوړېدلی ؟ بايد د فيوضاتو اخذ هم د حضرت محمدﷺ په مُتابعت کې وي ؟

**ځواب** : درسول اللهﷺ متا بعت په دوه قسمه دی يو دنبي عليه السلام دشريعت او سنتو متابعت دی چې تر قيا منته پورې يې متا بعت په هر چا باندې واجب اوفرض دی او يو په واسطه د حضرت نبي کريمﷺ سره دفيوضاتو اخذ دی په دې کې هم دی مبارکﷺ تر هغو پورې واسطه دی چې کله ځوک حقيقت محمدي ﷺ او مشرب دده ته ورسيږي بيا دفيو ضاتو اخذ پخپله کولی شي لکه يو ځوک چې دبادشاه له مقربينو څخه وي او بيا دی خپل يو غلام بادشاه ته وروپيژني نو که دی ورسره وي او کنه هغه غلام بادشاه ته وصل کيدلی شي ځکه چې ده ورپيژندلی وي .

**یادونـه** : فنـاء فـي الله او بقـاء بـالله مخکې تېر شول اوس يـوه بـاريکي بيـانوو او هغـه داده چې: کلـه سـالک دبـاري تعـالی ﷻ صفاتو ته ورسيږي او ماسوی ټول فـاني شي او سالک په صفاتو کې باقي شي او دبقا فـي الصفاتو دا معنی ده چې دتـه لـه هغـو صفاتو څخه فـيض راشي او دی پرې پوهيږي چې دفلانـي صفت فيض ماته راځي نو چې فنا ء في الصفات راغله نو عـين دسالک پاتې کيږي او اثر يې نه فاني کيږي.

**سـوال** : دشي اثر تـابع دهغـه شي وي نو څنګه متبـوع فـاني کيږي او تابع نه فاني کيږي ؟

**ځـواب** : دسالک صفت له هغه انعکاس څخه عبارت دی چې پـه وخـت دعـدم دده کې و. نـو حاصـل دجـواب دادی چې سـالک دحق سبحانه وتعالی ﷻ صفاتو ته ورسيږي او فنا ورته حاصله شي نو ما سوی له صفاتو ټول ممکنـات فـاني کيـږي او پخپلـه سـالک هم ممکن دی ځکه دی هم فاني کيږي اما دصفت هغـه انعکـاس نه فـاني کيـږي ځکه چې دصفت انعکـاس لـه صفت سره لازم وي چې صفات وي انعکاس يې هم وي او کله چې بيا فنـاء فـي الـشيو نات راشي او سالک دنورو انبياوو عليهم السلام له ولايت څخه تېر شـي او دآنحـضرت ﷺ ولايت تـه ورسـيږي نـو دلتـه بيـا دعـين سالک او داثر يې ددواړو فناء راځي ځکه چې شيو نات تر صفاتو

فوق دي نوچې فناء في الشيونات راځي صفات به هم فاني کيږي نو لازم ددوی چې انعکاس ددوی دی هغه به هم فاني کيږي او کله چې فناء في الاعتبارات راشي بيابه شيو نات هم فاني کيږي او چې کله قرب بلا کيف حاصل شي نو بيا اعتبارات هم فاني کيږي ځکه چې دحضرت مجدد صاحب رحمة الله عليه په نزد ممکنات داضافي صفاتو ظل دی او اضافي صفات دذاتي صفاتو او ذاتي صفات دشيو ناتو او شيونات داعتباراتو ظل دی او دا ټول بيا داهل تصوفو په مسلک کې دحق سبحانه وتعالیٰ ﷻ ظل دی نو چې څومره سړی عروج کوي لاندې مرتبې فاني کيږي او په فوق کې بقاء راځي.

علم حق در علم صوفی گم شود　　　　این سخن کی باور مردم شود

  

## د(وَنَحْنُ أَقْرَبُ إِلَيْهِ مِنْ حَبْلِ الْوَرِيْدِ)

# وضاحت

الله تعالى فرمايي چې: ((وَنَحْنُ أَقْرَبُ إِلَيْهِ مِنْ حَبْلِ الْوَرِيْدِ)) له حضرت مجددصاحب قدس سره څخه چا پوښتنه وکړه چې ددې آيت په معقوله توګه تفصيل څه شی دی؟نومجدد صاحب رحمة الله عليه ورته وويل: چې دحق سبحانه وتعالى ﷻ دااقربيت مخلوق ته منصوصي دی.داپه عقل کې نه ځايېږي خودومره تفصيل به يې وکړم چې مِنْ وَجْهٍ په تعقل کې ځای ونيسي اوحقيقت دتفصيل يې مشکل دی په هغه باندې الله تعالى ﷻ ښه پوهيږي.

نوده مبارک ورته وويل چې :ماهيت په دوه قسمه دی يوظلي اوبل اصلي.مخکې مو وويل چې : دممکناتو ماهيت داضافي صفاتو ظل دی او اضافي صفات دذاتي صفاتو ظل دی اوبياهغه دشيوناتوظل دی الخ.نو چې کله ماهيت په دوه قسمه شويو ظلي اوبل حقيقي .نودممکناتو ماهيت چې دخالق دصفت ظل دی نو دغه دممکناتو ماهيت ته ددوی ترظلي ماهيت حقيقي ماهيت

ورنژدې دی ځکه چې داظلي ماهیت په خپل ظلیت سره وجود تـه نـه دی راغلـی بلکـې پـه اصـلي اوحقیقـي ماهیـت سـره وجـود تـه راغلی. مثلاً یو کُلال یـوه کـوزه جـوړه کـړې ده، دغـې کـوزې تـه تـر خپـل ځـان هغـه کُـلال ورنـژدې دی، حتـی کـه پـه کـوزه کـې کومـه خرابي وي، کـوزه پـه خپلـه خرابـي نـه وي خبـره، او کُلال ورباندې خبر وي. همدارنګـه مـونږ او تاسـو تـه تـر خپـل ځـان هغـه اضـافي صفات رانژدې دي او بیا تر ځان او اضافي صفاتو ذاتي صفات رانژدي دي او بیا ترځان، اضافي صفاتو او ذاتي صفاتو شیونات رانژدي دي او بیا اعتبارات رانژدي دي اوبیا ترټولو مونږ او تاسو تـه حـق سـبحانه وتعـالی ﷻ رانژدی دی، ځکـه چـې دوی ټـول دحـق سبحانه وتعالی ﷻ ظِل دی. مَثلاً مونږ اوتاسو دخپلې مَلا یا شا نـه خبر نـه یـو او د خپلـو اوږو منـځ راتـه نـه ښـکاریږي او حـق سـبحانه وتعـالی ﷻ زمـونږ پـه ټـول وجـود علـم لري،نـو ځکـه حـق سـبحانه وتعالی ﷻ فرمایي چې: ((وَنَحْنُ أَقْرَبُ إِلَيْهِ مِنْ حَبْلِ الْوَرِيْدِ)).

# د نفس درجې

## نفس اووه درجې لري:

۱ـ اَمّاره. ۲ـ لَوّامَه. ۳ـ مُلْهِمَه. ۴ـ مُطمَئِنّه. ۵ـ رَاضیه.

۶ـ مَرضیّه. ۷ـ عبودیه.

په اصل کې نفس اماره بالسوء دی ( اِنَّ النَّفْسَ لَاَمَّارَةٌ بِالسوْءِ ) ترڅو یې چې له مشائخوسره تعلق نه وي راغلی او مرید شوی نه وي نو چې تزکیه یې رانه شي تر مرګه پورې به باغي وي اوبیاچې کله یې له مشائخو سره تعلق راشي اوڅه ناڅه تزکیه یې راشي نوبیا نفس (لوامه) شي. یعنې چې کله غلط کار وکړي او یا ورڅخه صادر شي بیا خپل ځان ملامتوي. ( وَلاَ اُقْسِمُ بِالنَّفْسِ اللَّوَّامَةِ )

او بیا یې چې کله د عالم امر تصفیه وشي او ولایت صُغری ته ورسیږي نو بیا نفس مُلهِمَه شي. یعنې د ځینو شیانو الهام ورته کیږي. ( فَاَلْهَمَهَا فُجُورَهَا وَ تَقْوَاهَا ).

او بیا یې چې کله تزکیه وشي او ولایت کُبری ته ورسیږي نو نفس (مطمئنه) شي، یعنې دصفاتو په فیوضاتو باندې یې کامل اطمینان راغلی وي. (یَاأَیَّتُهَا النَّفْسُ الْمُطْمَئِنَّةُ).

او بیا چې کله ولایت عُلیا د ملاء الاعلی ته ورسیږي نو نفس (راضیه) شي. یعنې له صفاتو څخه چې شیوناتو ته عروج وکړي نو د ولایت علیاء په ابتداء کې راضیه ګرځي اود ولایت په انتهاء کې بیا مرضیه ګرځي. (ارْجِعِي إِلَىٰ رَبِّكِ رَاضِيَةً مَّرْضِيَّةً).

اوبیا چې کله د ولایت له کمالاتو څخه تېر شي اودنبوت کمالاتو ته ورسیږي او له عروج څخه وروسته یې نزول هم راغلی وي بیا نو نفس عبودیه ورته ویل کېږي، چې دنفس دمقام انتهاء ده، کوم چې له کامل عروج نه وروسته یواځې او یواځې د الله تعالی ﷻ د رضا له پاره دمخلوق خدمت کوي.

ابن عربي چې د وجودیه وو رئیس دی؛ وایي چې: د ولایت کمالات د نبوت تر کمالاتو بهتر دي، ځکه د ولایت په کمالاتو کې د سالک مخ د حق سبحانه وتعالی ﷻ طرف ته وي او ایمان یې شهودي وي او په عشق او محبت کې وي اود نبوت په کمالاتو کې د سالک مخ د مخلوق طرف ته وي او شهودي ایمان یې بېرته غیبي وګرځي اوهغه عشق او محبت یې له حق سبحانه وتعالی ﷻ سره پاتې نه شي او بېرته د نورو خلکو په کیفیت متصف شي.

دوی مبارکان دا خبره څکه کوي چې صفاتو، شیوناتو او فوقو مقاماتو نه دي رسېدلي، که نه چې څوک د ولايت له کمالاتو تېر شي تردې پورې چې وصلِ عُريان ته ورسیږي اوبیا چې دمخلوق خوا ته نزول کوي نو سره له کمالاتو نزول کوي. يعنې کمالات د صفاتو، شیوناتو، اعتباراتو او قُرب بلا کیف د حق سبحانه وتعالیﷻ د مخلوق خوا ته له ځان سره راوړي. اوهغه هم په امر د الله تعالیﷻ سره وي، نو نسبت د نبوت دکمالاتو د ولايت و کمالاتو ته داسې دی لکه د دریاب نسبت څاڅکي ته. او ده خپل ټول عشق اوعشرت چې په وصل کې و هغه يې ټول پرېښی وي او بېرته د خلکو خدمت کوي اود خلکو رُشد او هدایت د انبیاوو علیهم السلام منصب دی. دی اوس د انبیاوو علیهم السلام په منصب کې خدمت کوي اود ظاهر علماء هم په دې وروستي کمال کې چې خلکو ته هدایت دی له اهل الله وو سره شریک دي. لېکن د ظاهر علماء دا خدمت له عروج او نزول څخه پرته کوي او اهل الله يې له عروج اونزول څخه وروسته کوي. يعنې اهل الله د روحانيت له ټولو کمالاتو سره په دې خدمت کې مشغول دي.

غرض داچې کوم (ولي) اتم عروج وکړي اوبیا يې نزول راشي هغه له ځانه سره دومره کمالات راوړي چې بیا کعبه شریفه هم ورته محتاجه وي، تردې پورې چې د کعبې شریفې حقیقت ځینو

اولیاء کرامو ته ورځي اود فیض اکتساب ترې کوي او د ځینو اولیاء کرامو استقبال ته ورځي. مثلاً:

یو کال ابراهیم ابن ادهم رحمه الله له یوې خوا حج ته روان واو په څوارلس کاله کې ورسېده ځکه چې قدم په قدم به یې نفلونه کول او بي بي رابعه له بلې خوا حج ته روانه وه او په کم وخت کې ورسېده. کله چې ابراهیم ابن ادهم (رحمه الله) کعبې مبارکې ته وره سېد ګوري چې د کعبې حقیقت په خپل ځای کې نشته. حیران شو چې داحقیقت چېرته دی. الهام ورته وشو چې د کعبې حقیقت دبي بي رابعې (رحمة الله علیها) استقبال ته تللی دی. کله چې بي بي رابعه (رحمة الله علیها) راورسېده ابراهیم (رحمه الله) ورته وویل چې: چې دادې څه شور جوړ کړی دی چې کعبه مبارکه ستا استقبال ته درغلې ده؟ دې مبارکې ورته وویل چې: تا څه ریاکاري شروع کړې ده چې په هر ګام به دې دوه رکعته نفل کول او ټول عالم دې په ځان خبر کړی. اوبیا یې ورته وویل چې: ( آن چه تو در نماز یافتی من در نیاز یافتم ).

همداشان نور داسې واقعات هم شته چې د کعبې حقیقت په ځینو کاملینو اولیاوو باندې طواف کوي.

**سوال**: د کعبې حقیقت څنګه چاته ورځي؟ په داسې حال کې چې د کعبې مبارکې مشرب دحضرت محمد مصطفی ﷺ تر مشرب

هم فوق دی، ځکه د کعبې مشرب دباري تعالیٰ ﷻ عین ذات دی اودا د حق سبحانه وتعالیٰ ﷻ د ذاتي تجلیاتو مظهر دی اود آنحضرت محمد ﷺ مشرب شان دعلم دی.

**ځواب:** اګرکه دکعبې مبارکې مشرب درسول الله ﷺ له مشرب څخه هم فوق دی لیکن کعبه مبارکه له خپل مشرب څخه ترقیامته پورې عروج نه شي کولی اوآنحضرت ﷺ اوهغه کامل محمدي ﷺ مشربه اولیاء کرام له خپل مقام څخه دومره فوق عروج کوي چې یو الله تعالیٰ ﷻ علم پرې لري .نو کله چې دوی عروج وکړي اوبیابیرته نزول وکړي اوهغه کمالات له ځان سره راوړي چې په کعبې مبارکې کې نه وي نو کعبه مبارکه دوی ته احتیاجه شي اود هغوکمالاتو داکتساب لپاره دوی ته ورځي اوحصول دکمالاتو ترې کوي.

# څلورم بحث

## د سَیرونو بیان

سیرونه څلور دي: چې په هغې کې دوه سیرونه د عُروج دي او دوه سیرونه د نزول.[1]

---

[1] تر لطیفهٔ اخفی پورې سیر ته ( سیرالی الله فی الاشیاء ) وایي. ځکه چې په عالم ممکن کې دی، یعنې دا سیر د سالک قرب دی و الله ﷻ ته. لېکن په عالم ممکن کې کوم چې پخپلې معنا حقیقي سره سیر ترې مراد دی ، کله چې سیر له ممکن څخه فوق شي یعنې سیر په تجلیاتو دا ضافي صفاتو ،صفات ثمانیه وو کې، په شیوناتو کې، په اعتباراتو کې بیا فوق الفوق،اصل الاصل،بیا قرب بلا کیف ته چې وصلِ عریان هم ورته وایي؛ راشي نو دې ته ( سیرالی الله فی الله ) وایي. یعنې سیر طرف د باري تعالیﷻ ته په مراتبو د حقیقت وجوب کې. نو دلته سیر په معنا حقیقي سره نه دی مراد، ځکه چې هغه مراتبې د وجوب خو هم بلا کیفه دي. تولې له مکان څخه منزهې دي، نو دلته سیر په معنا دحرکت علمي سره دي، ځکه چې دلته علم فوق شو اوعروج یې وکړ د اضافي صفاتو له تجلیاتو څخه د صفاتو ثمانیه وو تجلیاتو ته. بیا شیوناتو ته، بیا اعتباراتو ته، بیا فوق الفوق اصل

الاصل بلا کیف راځي چې تعبیر ترې نشي کېدلی اوادراک د سالک هم په دې ځای کې محو کېږي. چې په دې ځای کې د (کَلَّ لِسانُه ) مقوله پرې صادقېږي. له دې وروسته حق سبحانه وتعالیﷻ ته سیر د وراء الوراء ده چې په دې ځای کې سالک ته علم راځي، فیوضات راځي اود مقاماتو کشفیات ورته کېږي. یعنې دحقیقت وجوب کمالات حاصلوي. ترټولو مخکې کمالات د اضافي صفاتو حاصلوي، د اهل الله وو ولایت حاصلوي، بیا دصفات ثمانیه وو کمالات حاصلوي، بیا ولایت د انبیاوو علیهم السلام حاصلوي بیا د ذاتي شیوناتو کمالات یعنې ولایت عُلیا حاصلوي. بیا د اعتباراتو کمالات یعنې د انبیاوو علیهم السلام کمالات حاصلوي. بیا چې فوق الفوق شي نوکمالات د اولوالعزمی حاصلوي.

په ( سیرإلی الله فی الله ) کې سالک د حقیقت وجوب د مراتبو کمالات حاصلوي. اود عالم وجوب ټول کمالات یې چې حاصل کړل نودا سالک بیا محو شي، مستغرق شي، هلته به ځای پیدا کړي ، په خپل عیش، عشرت، د عشق وصال اومحبت کې به گرفتار شي، بیا به مُستهلک شي او د قیامت تر ورځې به مستهلک وي، چې مثال یې ځینې هغه مجذوبین دي چې په بازارونو کې گرځي او له خپل حال څخه خبر نه دي.

بل مثال یې داسې دی لکه یوځوک د شاتو ( عسلو ) دریاب ته ورسیږي او خپل عیش او عشرت شروع کړي، له نورو خلکو ( دُنیا او مافیها ) څخه یې تعلق پرې( قطع ) وي، ممکن به څه کوي؟ ځان به څه کوي؟ ښځه به څه کوي؟ عیال به څه کوي؟ دُنیا به څه کوي؟ ځکه چې هغه خپل حقیقي او واقعي مطلب ته رسېدلی دی.

اوبا به په اذن اوارادې د حق سبحانه وتعالیﷻ سره بېرته مخلوقاتوته نزول کوي، چې دې حالت ته ( سیرعَنِ الله فی الله مع الله ) ویل کېږي. چې کله یې مخلوق ته

نزول راشي، يعني دحقيقت وجوب كمال لاس ته راوري نو بيا ( سيرعن الله في الله ) يې وكړ. (في الله ) يې ځكه بولي چې: په مراتبو د حقيقت وجوب كې سير ته ( سير في الله ) وايي. يعني نزول كوي اعتباراتو ته بيا شيوناتو ته، بيا ذاتي صفاتو ته ،بيا اضافي صفاتو ته ، يعني په مراتبو د عالمِ وجوب كې شو. دلته بيا هم سير په معنا د حركت علمي دی. يعني له حقائقو د ذاتِ اقدس ﷻ څخه نازل شو اولاندې راغی. او ( مع الله ) يې په دې معنا سره بولي چې سره له مراتبو دكمالاتودحقيقت وجوب يې سير وكړ او هغه كمالات يې حاصل كړل ، نو ( سير عن الله فى الله مع الله ) شو. نو اول ( سيرنزولي ) شو چې كله عالم ممكن ته بيا راښكته شي، نو دلته بيا سير په خپله معنا سره . يعني ( سيرعن الله مع الله في الاشياء ) دی ځكه چې دا سير يې له ( عالم الارواح ) څخه دی. سير په عالم مشاهده كې دی په عناصر اربعه وو كې سره له حصول دكمالاتو د مراتبو د حقيقت وجوب، نو دا سيرعن الله مع الله في الاشياء شو. يعني په عالم ممكن كې دی. دلته يې هغه كمالات د مراتبو د وجوب له ځان سره راوړه. يعني كه يې كمالات د مراتبو د وجوب ټول حاصل كړي وي بيا نو سير د نزول دټولو اجزاوو راځي. يعني نزول د نفس ناطقه يې هم راځي. د عالم امر او عالم خلق نزول يې هم راځي. نوكه يې تو ل كمالات حاصل كړي وي او كامل نزول يې كړی وي لكه نزول د انبياوو عليهم السلام ځكه چې له انبياوو عليهم السلام سره د حقيقت وجوب د مراتبو كمالات دي، نو له دې وجهې دهغوی نزول كامل نزول دی، نو بيا دده هم سير د نزول د ټولو اجزاوو راځي. او ځينې اهل الله وو كه چېرته د عالم وجوب ټول كمالات نه وي حاصل كړي نودا لطيفهٔ روحاني يې چې دلته ده هلته په حصول د كمالاتو دحقيقت وجوب كې پاتې

کېږي او نفس ناطقه يعنې عالم خلق يې نزول کوي چې دې حالت ته تفرقه ( جلاوالی ) پس له اجتماع څخه وايي. يعنې په لومړي سر کې يې اجتماع د ټولو لطائفو وه، بيا يې تفرقه راغله ،يعنې عالم ارواح يې په حصول دکمالاتو کې پاتې شو اونفس ناطقه يې دخلکو په خدمت کې دی چې داسې نزول ته ناقص نزول وايي، څکه چې کامل نزول هغه نزول دی چې دمراتب وجوب ټول کمالات يې حاصل کړي وي او نزول د ټولو اجزاوو يې راشي، نو دغه نزول يې چې راشي نو بيا داسې ( ولي) له مرجوعينو څخه بلل کېږي، لکه څرنګه چې لومړی ډول له مستهلکينو څخه بلل کېده . يعنې هغه اولياء الله يا اهل الله چې رجوع يې کړي وي له هغه اولياء الله وو او اهل الله وو څخه بهتر دي چې په شرافت، عيش اوعشرت کې پاتې دي اود مستهلکينو له جملې څخه دي چې ځينې اهل الله مثلاً لکه وحدت وجودي هم له دې جُملې څخه دي چې دوی حقائقو يعنې اصولو ته نه دي رسيدلي يواځې اوبواځې ولايت ظلی ته رسيدلي دي، نو له ځان سره دا حکم کوي چې ځينې خلک کمال ته نه دي رسيدلي ، ياداسې حکم کوي چې ( العياذ بالله ) ولايت د نبوت له کمالاتو څخه بهتر دی. يعنې د ولي په ولايت کې خو رجوع و طرف د الله ﷻ ته ده او هميشه په وصال، عيش او عشرت کې وي اوهغه ولي چې نزول يې کړی وي دهغو رجوع بيرته مخلوق ته وي او بشر ورته حجاب شوی وي. حرمان ورته پيدا شوی و ، بېرته فراق ( جدايي ) ورته پيدا شوی وي او مخ يې بېرته د مخلوق خواته ګرځېدلی وي ،نو ځينې له وجوديه وو څخه چې اصولو ته نه وي رسيدلي اوپه ظلاتو کې پاتې وي داسې حکم کوي چې ( العياذ بالله ) ولايت تر نبوت فوق دی . اوپه دې خبر نه دي چې د نبوت کمالات خو هغه کمالات دي چې دحقائقو وجوب مراتب يې ټول له ځان سره راوړي دي، يعنې دغه مخ يې چې دخلکو په خوا دی دا هم دخدایﷻ په اذن او ارادې سره دی. چې مثال يې دادی چې يو څوک د شاتو درياب ته تللی وي او له درياب څخه يې د

شاتو بيالې سپرې کړې وي اوپه خلکو يې تقسيموي. چې داسې ولي له مرجوعينو څخه بلل کېږي. نزول يې راغلی وي او په مذهب، مسلک او کمالاتو د نبوت کې قرار لري. د ظواهر علماء اګرکه دمراتبو کمالات يې نه دي حاصل کړي اوکمالات يې هم نه وي ورسره راوړي لېکن له اوله تر آخره په دې وظيفې او مسلک کې مشغول دي. نودا ( سيرعن الله مع الله ) يعنې د حقائقو وجوب دکمالاتو له حصول سره ( سيرفي الاشياء ) شو ، چې ببرته يې کيفيت او عادت داسې شي لکه د نورو خلکو. د قرآن کريم ددې آيت مطابق چې : ((مَالِ هَٰذَا الرَّسُولِ يَأْكُلُ الطَّعَامَ وَيَمْشِي فِي الْأَسْوَاقِ )) آلاية. کفار خو ظاهر بين وو او انبياوو کرامو عليهم السلام ته په کتو سره به يې ويل چې: دا څنګه رسول دی چې خوراک کوي لکه زمونږ غوندې او احتياجات لري لکه زمونږ غوندې . او له حقيقت څخه يې خبر نه وو.

دانبياوو عليهم السلام حقيقت دباري تعالیﷻ د ذات تجليات دي، يعنې عالمِ امر يې د باري تعالیﷻ د ذات تجليات دي او عالمِ خلق يې دباري تعالیﷻ د صفاتو تجليات دي. او پخوانی عالم امر او عالم خلق يې لباس دی، نو دوی يعنې کفارو د انبياووعليهم السلام لباس ليده او د تجلياتو له حقيقت څخه يې بې خبره او محروم وو، چې داسې به يې ويل چې: ((مَالِ هَٰذَا الرَّسُولِ يَأْكُلُ الطَّعَامَ وَيَمْشِي فِي الْأَسْوَاقِ)) نو د نبي کامل تابع هم هغسې کمالات له ځان سره راوړي او ببرته يې له خلکو سره دا سې کيفيت وي لکه دنورو خلکو. د خلکو دخدمت او اصلاح له پاره يې چې نزول کړی وي نوداسې چاته يا ( قطب المدار ) وايي او يا ( قطب ارشاد ).

قُطبِ مدار: هغه څوک دی چې : په غيبي کارونو باندې مقرر وي، لکه ببړۍ ( کښتۍ ) يا سرې له غرقېدو او دوبېدو څخه خلاصوي.

او قُطبِ ارشاد: هغه څوک دی چې نزول يې دخلکو اصلاح او لارښوونې ته کړی وي.

**﴿١﴾ سیر الی الله فی الاشیاء دی**. یعنې سیر د ولي په عالم ممکن کې چې عالم خلق او عالم امر دی یعنې په تزکیه دعالم خلق سره تر عرشه او لوح محفوظ پورې سیر کوي اوپه تصفیه دعالم امر سره له عرش نه پورته تر کُرې د لطیفهٔ اخفی پورې چې دعالم ممکن آخري درجه ده سیر کوي، نودا ( **سیرالی الله فی الاشیاء** ) دی اودا سیر په حقیقي معنا سره ده ځکه چې په عالم ممکن کې سیر ممکن دی.

**﴿٢﴾ ( سیر الی الله فی الله ) دی**. یعنې چې له عالم ممکن څخه اضافي صفاتو ته ، بیا ذاتي صفاتو ته، بیا شیوناتو ته، بیا اعتباراتو ته اوبیا ذات بحث ته تیر شي نودا ( **سیرالی الله فی الله** ) دی، دوجوب په حقائقو کې. اودا سیر په مجازي معنا سره دی، ځکه چې دلته مسافه نشته، مکان نشته، ټول دوجوب حقائق دي اوهلته سیر ممکن نه دی، نو دلته سیر په معنا دعلمي حرکت سره دی، کله چې سالک ته دکوم واجبي حقیقت علم حاصل شي دهغه حقیقت فیض ورباندې نازلیږي. مثلاً اول د اضافي صفاتو

---

لنده داچې ( سَیرونه ) څلور شول. دوه د عروج او دوه د نزول. چې نزول یې راشي هغو ته ( مرجوعین، قطبِ مدار او قطبِ ارشاد ) ویل کېږي . او چې هلته پاتې شي نو ( مستهلکین او مستغرقین ) ورته ویل کېږي. چې تر قیامته پورې هم هلته پاتې وي او له خلکو سره یې هیڅ ډول تعلق نه وي.

فيض ورباندې نازليږي، بيا چې کله يې علمي حرکت فوق شي نو بيا د ذاتي صفاتو فيض پرې نازليږي اوداسې نور تر آخره پورې.
او کله چې دا دواړه سيرونه تام شي نو سالک به له دوو حالتونو نه خالي پاتې نه شي. يا به هلته د حق سبحانه وتعالی ﷻ په مشاهده کې مستغرق شي چې هغو ته (مستهلکين) ويل کېږي اوپه بازارونو کې د لېونيانو په شان ګرځي، له خلکو سره يې تعلق ختم شي او د هميشه وصال شرف او فضيلت ورته حاصل وي، دلته ليوني وي خو هلته په وِصال کې وي.

او يا به دغه سالک تام استعداد ولري، چې کله (سيرالی الله فی الله) تام کړي اود ذات بلا کيف حقيقت ته ورسيږي بيا په امر د الله تعالی ﷻ سره بېرته نزول کوي چې دا نزول هم دوه سيره لري:

۱ ـ (**سير عن الله فی الله مع الله**) دی، يعني له الله تعالی ﷻ څخه سير دی د مخلوق خواته دوجوب په حقائقو کې. مثلاً له ذات بحث څخه اعتباراتو ته، بيا شيوناتو ته، بيا ذاتي صفاتو او بيا اضافي صفاتو ته نزول کوي. يعني کوم کمالات يې چې حاصل کړي وي هغه له ځان سره راوړي او دې سير ته (مع الله) هم وايي، ځکه چې دوجوب حقائق له ځان سره دمخلوق خواته د مخلوق د تکميل له پاره راوړي.

۲ ــ ( **سیر عن الله فی الاشیاء مع الله** ) دی. یعنې چې له اضافي صفاتو څخه بېرته لطائفو ته، بیا لوح محفوظ ته، بیا عرش ته، بیا نورو ممکناتو ته راښکته شي بیا بېرته له خلکو سره یوځای کېږي نو دا ( **سیرعن الله فی الاشیاء** ) دی، چې په ممکناتو کې هم دی او ( **مع الله** ) هم دی، ځکه چې د حقائقو دوجوب کمالات یې له ځان سره راوړي وي اود الله تعالیٰ ﷻ په اذن سره یې خلکو ته رسوي اوددې سالک شهودي ایمان بېرته په غیبي ایمان سره بدل شي اودمخلوق په ارشاد سره مامور شي، لېکن چې هر کله وغواړي بېرته ایشار او عروج وکړي نو کولی یې شي.چې دا نزول بیا دوه قسمه دی:

[۱] **نزول تامه کامله**: نزول تامه کامله هغه نزول ته وایي چې: انسان د عالم خلق له ټولو اجزاوو او له عالم امر سره د خلکو دخدمت له پاره د وجوب د حقائقو د ټولو کمالاتو له حصول څخه وروسته نزول وکړي. دا تامه نزول دانبیاوو علیهم السلام اود هغو اهل الله وو دی چې د انبیاوو علیهم السلام کامل تابع وي.

[۲] **نـزول ناقـصه**: نـزول ناقـصه دې تـه وایـي چـې: سـالک د وجوب د حقائقو ځینې کمالات حاصل کړي وي اوځینې پاتې وي. خوله لطیفۀ نفسي سره له ځینو نورو اجزاوو څخه ده بېرته نزول کړی وي او عالم ارواح یې د پاتې کمالاتو د حاصلولو له پاره په

عروج کې پاتې وي. يعنې عالم خلق يې نزول کړی وي او عـالم امر يې په عروج کې پاتې وي، چې دې ته د تصوف په اصطلاح کې لـه جَمعې ( يوځای والي ) وروسته افتراق ( جدايي ) وايي. او کله چې عالمِ ارواح هغه نور پـاتې کمـالات حاصـل کړي هغـه هـم بيـا نـزول کوي او دې ته له افتراقه وروسته جمع وايي، بيا دا نزول هم کامل شي.

الله الله الله

# د نوي مُرید له پاره د قرانِ کریم د تلاوت مسئله

ځینې خلک دا وایي چې: څوک مُرید شي بیا دې نو د قرآن شریف تلاوت نه کوي، خو داسې نه ده، بلکې حقیقت دادی چې: یود مُقربینو عبادت دی او یو د ابرارو عبادت دی. د ابرارو په عمل باندې ثواب مرتب کېږي. لېکن له یوه مقامه بل مقام ته ترقي پرې نه کېږي. اود مقربینو په عمل ثواب هم مرتب کېږي او ترقي هم لاس ته راځي. مثلاً له ولایت صغری څخه ولایت کبری ته ،بیا ولایت علیا ته،اوبیا دنبوت کمالاتو ته همدا رنګه فوق ته ترقي پرې مرتب کیږي .نو په اوله مرحله کې چې مرید داسم ذات په ذکرسره په لطائفو کې مشغول شي داعمل دمقربینو ده چې ثواب هم پرې مرتب دی اوترقي هم پرې راځي. اودقرآن عظیم الشان په تلاوت یا په نوروذکرونوسره یواځې ثواب مرتب کیږي لیکن تز کیه، تصفیه ،شوق اوعشق نه پیداکیږي .ولې خوتصفیه نه وي را غلې ځکه چې آیت شریف دی: ،،لایمسه الا المطهرون: ،،ددې آیت باطني معناداده چې دقرآن انوار اوتجلیات، لذت، شوق

،عشق،محبت اوذکر هیڅوک نشي پیداکولی تر څو چې دګناه له کدوراتوڅخه صفا شوی نه وي .یعنې مراد له مطهرون څخه هغه څوک دي چې له ګناهونو څخه پاک وي او داپاکوالی داسم ذات په ذکر سره پیدا کیږي .او له دې حیثیته شغل داسم ذات عبادت دمقربینو دی او شغل دنورو ذکرونو عمل دابرارودی.

او په دوهمې مرتبې کې بیا خبره بالعکس ده یعنې کله چې دباطن تصفیه وشي نو بیا دقرآن عظیم الشان ذکریا نور اذکار عمل دمقربینو دی او شغل په لطائفوعمل دابراروده.نو په دې متوسطې درجې مرحلې کې دقرآن عظیم الشان تلاوت ډېر نافع وي

او پـه اخري مرتبې کې چې سالک انتهاتـه ورسیږي او لـه لطائفو ،نفی، اثبات اومراقبوڅخه فارغ شي هلته بیاپه لمانځه کې دقرآن عظیم الشان ډېر تلا و ت کول عمل دمقربینو دی .او په دې مرتبې کې بیا لطائف ،اثبات، اوبې له لمانځه څخه تلاوت عمل دابراروبلل کیږي.

نو خلاصه داده چې څوک اول وظیفه واخلي او مرید شي نوتر نورو اذکارو دې دلطائفو په ذکر کې دې ډېر کوشش کوي څکه چې ددې ذکر پـه سبب سره دنورواذکارو لیاقت پیداکیږي .حضرت مجددصاحب مبارک رحمة الله علیه فرمایي چې:

*عروس معنیِ قرآن حجاب آنگاه براندازد　　که دار الملک ایمان مجرد بیند از غوغا*

داتشبيهات دي يعني دقرآن معاني دقرآن لذت ،دقرآن حقيقت يې مشابه کړل له نوې ناوې سره او نوې ناوې چې څوک کورته راوړي دا تر هغه پورې له خپل مخ څخه حجاب نه پورته کوي او خپل خاوند ته ځان نه ښکاره کوي چې ترڅو پورې کوټه له نورو خلکو خالي شوې نه وي همدارنګه دقرآن حقيقت له خپله ځانه حجاب هلته لرې کوي چې دارالملک دايمان چې زړه دی له ماسوی الله څخه خالي ووينې. يعنې دقرآن دلذت او دقرآن دحقيقت په مخکې حجابات چې دي هغه له ماسوی الله سره تعلقات دي لکه حب دمال حب دجاه او داسې نور نفساني خواهشات، نو چې تر څو له زړه څخه دا ټول نفساني محبتونه لرې شوي نه وي تر هغو پورې دقرآن عظيم الشان حقيقت لذت شوق او محبت په زړه کې ځای نه نيسي او نه سالک پرې پوهيږي او چې کله تزکيه او تصفيه راشي بيا دانسان ټول وجود نور ګرځي او دقرآن له انوارو سره مناسبت پيدا کوي. او دقرآن صفت موږ او تاسې نشو کولای پخپله الله تعالیٰ ﷻ يې دارنګه صفت کړی دی چې : ﴿ قُل لَّوْ كَانَ الْبَحْرُ مِدَادًا لِّكَلِمَاتِ رَبِّي لَنَفِدَ الْبَحْرُ قَبْلَ أَن تَنفَدَ كَلِمَاتُ رَبِّي وَلَوْ جِئْنَا بِمِثْلِهِ مَدَدًا ﴾

يعني قرآن عظيم الشان دالله تعالی ﷻ دکلام صفت دی که داټول دریابونه سیاهي «رنګ» شي اوداټولې ونې قلمونه شي لکه په یوبل آیت کې چې راغلي دي دابه ټول له هغه څخه مخکې چې دالله تعالی صفت بیان کړي ختم شي.

اوداواقعیت دی څکه چې مونږ اوونې اودریابونه ټول متناهي «ختمېدونکي» یواودالله تعالی ﷻ صفات قدیم اوغیر متناهي دي نو متنا هي به څنګه دغیر متناهي بیان وکړي. غرض داچې قرآن عظیم الشان چې دالله تعالی ﷻ کلام دی په نوروکلامونوداسې بهتري لري لکه دالله تعالی بهتري په نورومخلوقاتو باندې.

**پوښتنه**: که څوک ووایي چې: یووار قرآن عظیم الشان دومره بهتري دومره ذوق اوشوق لري نو چې څوک یې اوري نو ولې به نه جذبه کیږي اونه لېونی کیږي.

**ځـــواب**: قرآن عظیم الشان بېشکه چې ډېر لوړمقام لري اوډېرمؤثر دی لیکن دعامو انسانانو اودقرآن عظیم الشان تر منځ مناسبت نشته او تر منځ یې حجابونه دي چه د ما سوی الله له تعلق څخه عبارت دي. او که یو ځل څوک مناسبت پیدا کړي بیا که سل کاله مسلسل تلاوت کوي او یا د قران عظیم الشان سماع کوي نو هیڅکله به ستړی نه شي. لکه چه د مولوي عبد الکبیر یمني په واقعه کښي راځي چې دی کله مکې مکرمې ته ورغی او

مسجد حرم ته داخل شو نو یو کال پر له پسې يې د کعبې مبارکې طواف کاوه او خوراک، څښاک او آرام يې نه دی کړی تر دې پورې چې دلمانځه له تشهد څخه پر ته ناست هم نه دی. دا ځکه چې د ده له عبادت سره مناسبت پیدا شوی و او غذایې همدا عبادت، طواف، ذکر د الله تعالیٰ ﷻ و، د ده د تجلیاتو مشاهده او داسې نور کشوفات وو. همدارنګه چې څوک له قرآن عظیم الشان سره مناسبت پیدا کړي هغه ته به د قران شریف په ویلو کې دومره شوق او ذوق پیدا کېږي چه د خپل تکلیف به هیڅ احساس نه کوي.

لکه یو صحابي په لمانځه ولاړ و اوبل ملګری يې ویده و. یو کافر راغی او پـه لمانځه ولاړ صحابي يې درې غیشې وویشت لیکن ده لمونځ (قطع) پرې نه کړ چې کله يې هغه بل ملګری را ویښ شو او وینې يې ولیدلې نو ورته وایې چې پـه اول ځل ولګېدلې زه دې ولې نه را ویښولم ؟ده مبارک ورته وویل چې ما ( سورة کهف ) وایه او داراته ښه نه برېښېده چې هغه قطع کړم او پرې يې ږدم . نو څوک چې له هرشي سره مناسبت ولري هغه پرې اثر کوي لکه موږ ځینې پښتو مصری یا شعرونه واورو نو په موږ باندې د ېر اثر کوي دهغه وجه داده چې مناسبت شته ځکه چې دا شاعر هم یو انسان دی، محتاج دی، په شکل او صورت او هرڅه کې مناسبت موجود دی، همدارنګه چې لـه قرآن کریم سره هم

مناسبت پیدا شي د قرآن کریم په تلاوت کې بیا تاثیر پیدا کېږي اودا انسان بیا د تجلیاتو لائق ګرځي، چې دا بیا د الله تعالی ﷻ یو لوی نعمت دی اوپه دنیا کې تر دې لوی نعمت نشته. الله تعالی ﷻ دې مونږ او تاسو دخپلو تجلیاتو لائق وګرځوي. آمین ثم آمین.

نو دا خبره دې څوک نه کوي چې اول څوک مُرید شي نو قرآن عظیم الشان دې نه تلاوت کوي، ځکه چې دقرآن عظیم الشان انوار تېز او قوي دي اود لطائفو انوار ضعیف دي، نو چې څوک د قرآن عظیم الشان تلاوت کوي د لطائفو انوار یې عاجز کېږي او مخ ته نه شي تللای. دا خبره بې اصله ده، بلکې اصلِ خبره داده کومه چې مونږ مخکې د مقربینو او ابرارو د اعمالو په اړه دهغوی یادونه کړې ده. هلته یې مطالعه کړئ!

سبحانه وتعالی

# دکلمې تحقیق داهل الله وو په مسلک

ګران پېشوا جناب حضرت محمد رسول الله ﷺ دکلمې طیبې په متعلق فرمایلي دي چې: که دنیا اومافیها (یعنې دنیا اوورسره هرهغه څه چې پکې دي، لکه غرونه، آسمانونه، دریابونه، وغیره) دتلې په یوه پله کې اوکلمه طیبه په بله پله کې واچوي نود کلمې طیبې طرف به وربانذې درونډشي.

تاسې وګورئ! که یوسړی زرکاله عمر په کفر، وحشت کې تېر کړی وي که یوځل په اخلاص سره کلمه د (لااله الاالله محمدرسول الله) ووایي نوتمام کفر اوهغه بداعمال یې محوه کېږي.

همدارنګه اهل التصوف اهل الله فرمایي چې: دغه کلمه جامع دټولو ولایاتو اوکمالاتو اوجامع دکمالاتو دولایت ده.

هغه ولایات چې له انبیاوو علیهم السلام په میراث پاتې شوي دي هغه په درې قسمه دي:

١ - ولایت صغری. ٢ - ولایت کبری. ٣ - ولایت علیا.

ترهغو پورته کمالات دنبوت دي:

۱ - کمالات دنبي . ۲ - کمالات درسول . ۳ - کمالات داولوالعزمي

دغه کلمه جامع ده دغو ټولو کمالاتوته هم اوولایاتو دنبوت ته هم .

په کلمه کې د (لا) سره نفي دجمیع ماسوا راځي: أَرَأَيْتَ مَنِ اتَّخَذَ إِلَٰهَهُ هَوَاهُ

دغه د (هواه) تفسیرداله سره شوی دی . هوا مقتضی دنفس اوشیطان ده . تفسیریې په (اله) سره شو. نوپه (لا) سره ټول الهات منفي شول . (لا اله) یعني نشته هیڅ مطلب، نشته هیڅ مقصد، نشته هیڅ خواهش دنفس، نشته هیڅ ماسوا چې په کلمه د (لا) سره لارجارو نه کړي نو (الا الله) ته نه رسیږي . یعني اثبات ته به ونه رسیږي .

نوپه (لا) سره ټول ماسوا نفی کېږي یعنې که کوم سالک صاحب دکشف اوکشوفاتووي ،دهغه له کشف اوکشوفاتوڅخه ماسوا ټول محوه کېږي . دانه معنی چې په دنیاکې محوه کېږي ،بلکې دکشوفاتودسالک څخه ټول محوه کېږي . که صاحب دکشف وي ،په (لا)سره ټول مطالب اومقاصدچې څه شی دي په دنیاکې هغه ټول محوه کېږي . نوبې دمحبت دالله نه بل هیڅ محبت نه وي، په (لا) سره ټول ماسوی نفي کېږي . یو جزء دولایت پیداشو.

ولایت دوه جزئه دي : نفي اواثبات . په کلمه د (لا) سره نفي دماسوی راغله ، یو جزء دولایت پیداشواوطریقت حاصل شو.

گر بزد الا الله بہ لا الہ — شرط عقلست ہر چہ غیر است ہمہ را بانداخت

چې (الاالله) ته رارسیږي په (لااله) سره ټول ماسوی ختمیږي . نودلته طریقت حاصلیږي اویوجزدولایت حاصل شو. (الاالله) ته چې راشي ، دلته حقیقت حاصل شو، حقیقت پیداشو. یعنې ماسوی ټول منفي شي، یوالله پاتې شو. نوچې (الاالله) ته راشي نوپه ده سره هغه څوک چې هغه اول دابتداء دولایت وي ، هغه به نوظل دصفاتوته رسیږي . یعنې ماسوی له ظلِ دصفاتوڅخه بل شی نشته . څوک چې په مخ تللی وي هغ به خودِ صفاتوته رسیږي . اصلي ذاتي صفاتوته رسیږي ولایت کُبری ته به ورسیږي . څوک چې تردې پیش قدمه شي هغه به بیا شیوناتودصفاتوته رسیږي . چې ولایت علیا دی .ولایت دملاء اعلی دی . دملائکو ولایت دی هغه ته به رسیږي .

نوپه (لااله الاالله) کې طریقت حاصل شو اوحقیقت هم حاصل شو. ولایت تام اوکامل شو. ځکه ولایت عبارت له نفي اواثبات څخه دی ، عبارت له نسیان اوبقاء څخه دی . هغه نسیان اوبقاء په دې اول جزدکلمې ثابتیږي . نوټول ولایات که صغری ، کبری اوعلیا دي په جزاول دکلمې چې (لااله الاالله) ده ،حاصل شو. ولایت تام اوکامل شواوحقیقت اوشریعت هم حاصل شو. یو حقیقت دشریعت ده اوبل صورت دشریعت ده ، صورت دشریعت په نفي کې حاصل شوی دی، یعنې په جزء اول دکلمې کې چې (لا) ده اوحقیقت دشریعت بیا په اثبات یعنې جزء ثاني دکلمې کې چې (الاالله) ده حاصلیږي .

صورت دشریعت له دې عبارت دی چې : یوانسان لمونځ ،روژه اونور عبادت کوي خوسره له تکلفه اونشاط کله ورسره وي اوکله نه .

اوحقيقت دشريعت بيادادی چې : سرې احکام داسلام په ځای کوي ، يعنې لمونځ اوروژه اونورتول عبادات ښه په لذت ،شوق ، کامل اخلاص اوبې له تکلفه يې اداء کوي نوداحقيقت دشريعت شو.

نوچې ( الاالله ) ته ورسيږي حقيقت دشريعت هم پيداشواوخلوص کامل هم پيداشو.نوکلمه د( لااله الاالله ) جامع شوه ټولوکمالاتودولايت سه ګانه ته. هغه ولايت چې يوسالک په زړوکلونوکې ور رسيږي. دلته په دغه جزاول دکلمې کې حاصل شو. يعنې ياظل دصفاتويا خودصفاتوذاتيه وو ته اوياشيوناتوذاتيه وو ته رسيږي. چې په اول ولايت صغرى اوپه دويم ولايت کبرى اوپه دريم ولايت عليامرتب دی يابه اعتباراتوذاتيه وو ته رسيږي چې ولايت عليا ده.

پاتې شو جزءثاني د کليمې چې (محمدرسول الله) ده ؛ دا جزء ثاني د کليمې چې مثبت او مفصل د رسالت ده چې مثبت او مفصل او محسن د رسالت ده دا جزء ثاني د کليمې نسبت و جزء اول د کليمې ته داسې نظير لري په مثل لکه يو څاڅکی و درياب ته يعنې اول د کليمې داسې نظير لري لکه يو څاڅکی او دا دويم د کليمې چې ( محمدرسول الله ) ده دا نظير لري لکه درياب. دا اول جزء نسبت و جزء ثاني ته لکه يو څاڅکی و درياب ته داسې نظير لري، ولې جزء ثاني د کليمې (محمدرسول الله ) چې مثبت او محسن د رسالت ده، رسالت يې ثابت شو رسالت نو خو دلته کمال د رسالت کمال د نبوت سالم چې له جزء اوله څخه فارغ شي له ولاياتو سي ګانه وو چې فارغ شي، بيا نو شروع کوي په کمالاتو د نبوت باندې چې هغه کمالات نبوت وجود متعلق جزء

خاکي د انسان ده، اول جزء د ولایت هغه موجود و په لطایف خمسه وو د عالم امر باندې، دغه دلته کمالات نبوت دا اوس مربوط دي په عالم خلق د انسان باندې چې هغه نواقص دي په انسان کې چې هغه څلور عناصر دي او یو لطیفه خاکي ده، لطیفه خاکي چې بیا کمال ته ورسیږي هغلته بیا کمال د ولایت دی. کمال د ولایت کمال د نبوت د نبي هلته حاصلیږي په کمال رسولو د لطیفې خاکي سره.

خاک شو خاک تا بروید گل  که بجز خاک نیست مظهر گل.

هغه د صوفي په تعریف کې چا یو ولي ویلي چې:

الصوفي كالارض يطرح عليها كل قبيح ولا يخرج منها الا كل مليح. دا صوفي لکه زمکه داسې ده لکه خاوري داسې ده، په خاورو په زمکه باندې هر قبیح هر خراب شی ولیږي خو له هغو خاورو څخه داسې شی را پورته کیږي چې هغه حیات د انسان ورپورې مربوط ده، یعنې خاورو پستي کړې ده عجز یې مختار کړی ده، په عجز باندې بیا داسې کمال مرتب ده، چې هغه کمال ته ورسیږي بیا نو پرې مرتب کمالات نبوت دي، یو منصب نبوت ده یو کمالات نبوت، کمالات نبوت علیحده ده منصب نبوت هغه قمیص ده چې په انبیاوو جوړ ده، هغه د چا نصیب نه ده او کمالات یې اهل الله و ته هم نقل کیږي، او اهل الله هم کمالاتو ته رسیږي د نبوت، نو جزء ثاني د کلیمې باندې چې مثبت د رسالت ده او محسن د رسالت ده دلته خالق (وفي ذلك فليتنافس المتنافسون) دا ایت مبارک هم دلته ورسره تعلق لري، یعنې په اول جزء کې خو ولایت تام و، هغه ولي چې د نبي ولایت ته ورسیږي هغه خو نفیس شو نفیس، نفیس خو

ډیر قیمتي شي ته وایي، څو ګڼه نفیس که بیالړ نور کوشش وکړي په کمالاتو د نبوت کې بیا په حصول د شرابو خالصو کې (وفي ذلك فليتنافس المتنافسون) په دې حصول د شرابو خالصو کې دې کوشش وکړي هغه کوشش کنندګان هغه نفیس خلک هغه ډیر قیمته خلک هغه چې ولایت کبری ته رسیدلي وي او علیا ته رسیدلي وي، هغه دې نو کوشش وکړي چې کمالاتو د نبوت ته هم ورسیږي، کمالاتو د ملاء اعلی ته بیا چې رسیږي هغه په دا نورو دریو لطایفو رسیږي، کمال د دا نورو دریو لطایفو چې لطیفه: هوایي، اتشي او آبي ده. دا په کمال د هغو سره کمال د نورو انبیاوو علیهم السلام ته رسیږي، نو جزء ثاني باندې کمال د ولایت ته سالک رسیږي، پاتي شو کمال د اولوالعزمه انبیاوو، کمال د رسولانو په دې سره بیا دغه سالک چې دې کمالاتو ته رسیدلی وي هغه نو بیا په هیئت وحداني د انسان باندې هلته ور رسیږي یعنې هیئت د وحداني د انسان چې بیا کامل د کمال ته ورسیږي هیئت وحداني د انسان دغه یو هیئت وحداني د انسان داسې نظیر لري لکه معجون، معجون چې سره ګډ کړي او سره ختنه یې کړي هیڅ شی نه تري جوړیږي خو سره ګډ شي خو هغه معجون چې شل اجزاوي لري یا سل اجزاوي لري، چې بیا یې خمیره کړي بیا چې په شاتو کې یو څه وخت خمیره شي بیا خم شي بیا نو هیئت وحداني ور اغوست کیږي، وروسته له هغې چې هیئت وحداني ور واغوستل شو بیا نو هغه ثمره او نتیجه پرې مرتبه کیږي، نو هغه کمالات د نبوت او کمالات د رسالت د اولولعزمي هغه بیا متعلق دي په کمال د هیئت وحداني د انسان سره، سره له دې چې هلته به ریاست د لطیفې خاکي

وي، پـه رياست د لطيفـې خـاکي سره بيـانو کمـالات د اولوالعزمـه انبيـاوو تـه کمـالات د انبيـاوو تـه سـالک ورسـيدو او رسـيږي، نـو دا ثابتـه شـوه چـې: ( لاالـه الا الله محمد رسـول الله ) دا جـامع شـو هـم د ولايـاتو جامع شـو د کمـالاتو د انبيـاوو د پـاره. د دې ټولـو د پـاره دغـه کلمـات جـامع شـو. دا داسې کلمه ده پـه مسلک د تـصوف سره، دغـه حاصل د دې بيان و چې ما دغه خپلو ملګرو ته وعده کړې وه چې زه به دغه بيان ان شاء الله کوم. خدای دې وکړي چې د دوی پـه ذهنونو کې يې تقرر پيدا کړی وي او ان شـاء الله ضرور بـه يې پيدا کړی وي او نورې خبرې خو ما په بلې رساله کې کړې دي خو دا طالبان دې داسې نه وايي چې دا رساله مونږ ته ولې نشوه بيان؟ طالبانو ! هغه رسالې له تاسې سره ليکلې دي. هغـه رسالې مـه پريـږدئ، هغـه رسالې مطالعـه کوئ ! خليفه صاحب له تاسي سره موجود ده پـه هر ځای کې چې مو اشتباه راتله بيا لـه خليفـه صـاحب څخه پوښتني کوئ، هغـه رسـالې داسې رسالې دي چې هغـه مغز د ولايت يعنې لـه اولـه د مکتوباتـه تـر اخره د مکتوباته، مکتوبات يو داسې کتاب ده چې له قرآن کريم نـه را ديخوا ته، له بخاري شريف را ديخوا ته، لـه حديثو را ديخوا بـل بيـا داسې کتاب نشته په کتابونو د اهل الله وو کې، پـه اسلام او شـريعت کې لکه مکتوبات چې دی. نو دغه رساله لـه اولـه د مکتوباتـه تـر آخره هغـه حاصـلات را اخيـستي دي. هغـه رسـاله مـه پريـږدئ هغـه رسـاله مطالعه کوئ ! او که مو اشتباه راتله خليفه صاحب تمام مهارت پکې لري ان شاء الله ستاسې حل د مشکلاتو کولی شي او کوي بـه يې ان شاء الله کوشش کوئ طالبانو ! چې هغه رساله پرې نږدئ، بلکې سبقاً

که مو چیرې ویله هم ویې وایاست چې په بل ځای کې بیا تاسې نشر د هغې کوئ چې دغه علم د باطن او علم د تصوف دا خدای نخواسته د بې کارو خلکو له لاسه بې کاره نه شي. نو په دې کې کوشش کوئ!

دغه بیان د کلمې د (لااله الا الله محمد رسول الله) ماتاسې ته بیان کړ خدای ﷻ دې وکړي چې ستاسې په ذهنو کې یې تقرر پیدا کړی وي.

اوس نو څو نفره زمونږ ملګرو د نقشبندیې شریفې سبقونه یې اتمام ته رسولي دي اخر ته یې رسولي دي، نو هغو ته په دغه طریقه کې اجازه کیږي او په خپلو اطرافو کې به بیا خدمتونه کوي د مسلمانانو خدمتونه به کوي هغوی ته دا توصیه ده هغوی ته هم دا اوس توصیه کوو چې بیا وروسته دوباره وخت نه پیدا کیږي، هغوی ته دا توصیه ده چې اول او اول به دوی تابع د شریعت اوسي یعنې په شریعت باندې به برابر وي که له شریعته مخالف وو بیا نو دوی له دغې طریقې څخه فایده نشي اخیستی اول به په شریعت باندې مستقیم وي، دویم به بیا خدمت د مسلمانانو کوي د خدمت د مسلمانانو د پاره به دغه بار په غاړه اخلي، شهرت به نه غواړي شهرت طلبي به نه وي ټول حرکات او سکنات، ټول افعال او اعمال به یې لپاره د رضا د خدای تعالی ﷻ وي، نه جاه و جلال، مادیات او شهرت به یې مطلب نه وي چې دا شیان یې مطلب وو بیا هم فایده نشي ترې اخیستی. او بله توصیه ورته داده چې دوی به ځان د ټول مخلوق د خدای تعالی ﷻ اخس او ارزل بولي، ځان به عاجز بولي په چا به تفوق نه کوي په ټول مخلوق باندې به ترحم کوي او د ټول مخلوق به خدمت کوي دا ورته توصیه ده، ځکه چې حضرت مجدد صاحب رحمه الله روافضو او معتزله وو سره په ضد کې و نو ده

مبارک یو وخت په یو مجلس کې دا وویل چې: زه د حضرت ابوبکر صدیق ﷺ صاحب مقام ته ورسېدم بلکې زه پورته شوم له مقامه د حضرت ابوبکر صدیق ﷺ څخه لویو مقاماتو ته بلکې د انبیاوو مقاماتو ته هم اهل الله بې تکلفه تلای شي او ځي یو مقام د تقرر ده یو مقام د هغوی ده هغوی ډېر فوق دي او مقام د تقرر د هر ولي هغه خپل مشرب ده، نو ده مبارک وویل چې زه مقام د حضرت ابوبکرصدیق ﷺ بلکې تر هغه پورته ولاړم. نو معتزله وو د ده دا خبره واورېدله، دا یې غنیمت وبلله، نو بادشاه د هغه وخت ته چې جهانګیر بادشاه و دا خبره یې وروړه، هغه ته یې دا خبره وکړه چې مجدد صاحب خو له حضرت ابوبکر صدیق ﷺ څخه هم ځان بهتره وباله. ولې چې داسې خبره یې وکړه چې ما د حضرت ابوبکر صدیق ﷺ د مقام څخه هم پورته عروج وکړو او له هغه څخه هم پورته شوم، نو ده خو له حضرت صدیق ﷺ نه هم ځان بهتره وګاڼه بادشاه حضرت مجدد صاحب راوباله دربار ته جهانګیر ورته وویل چې تا خو داسې خبره کړې ده! ده ورته وویل: هو دا خبره ما کړې ده، خو دومره خبره ده چې زه اهل سنت والجماعت یم اهل سنت والجماعت چې حضرت علي کرم الله وجهه په حضرت صدیق ﷺ باندې بهتره وبولې هغه اهل سنت والجماعت نه ده. نو زه خو د حضرت علي ﷺ په نوکرانو کې یم زه به څنګه دا خبره کوم چې العیاذ بالله زه د حضرت صدیق ﷺ څخه بهتره یم او هو هغه تجلیات هغه نموني او هغه انعکاسات د حضرت صدیق ﷺ په ما باندې وارد و. له هغې دا نه فهمیږي چې زه حضرت صدیق ﷺ یم او یا له حضرت صدیق ﷺ څخه بهتره یم یعنې لکه وړانګه چې کوټه کې ولویږي یا لمر په

ځمکه باندې ولویږي نو داسې نه ویل کیږي چې دا ځمکه لمر شوه، داسې نه ویل کیږي چې دا کوټه لمر یا ځمکه له لمره بهتره شوه خو هغه انعکاسات، هغه تجلیات او هغه فیوضات د لمر په ځمکه باندې ولویږي په کوټه کې ولویږي دا نه معنی چې کوټه او ځمکه لمر او یا له لمره څخه فوق شو، نو داسې کیفیت خو پیښیږي چې تجلیات د انبیاوو هم را نازلیږي هغه هم واردیږي د صحابه وو او د نورو صحابه وو هم واردیږي، نو له دې څخه دا نه معلومیږي چې هغه شخص له هغه صحابي بهتر شو، یا هغه مقام ته ورسېده. او هغه خبره یې ورته وکړه چې بل زه صوفي یم یو اهل سنت والجماعت یم بل صوفي یم صوفي هغه ده چې له اخبث سپي څخه هم ځان اخبث وبولي، هغه صوفي چې له خپل سپي څخه هم ځان اخبث و نه بولي هغه صوفي نه دی. زه صوفي یم، خو دا خبرې چې شوي دي البته هغه تړولې په عناد شوي دي.

نو دا شرط ده چې د نقشبندیانو په طریقه کې چاته اجازه کیږي هغه سړی به ځان اخبث تر هر چا بولي. دا یې بل شرط ده. او خدمت د خلقو د پاره به دا کار کوي، نه د خپل ځان د شهرت او د علانیت او د مادیت پرستي او د عزت پرستي له پاره. د دې د پاره که یې وکړي بیا حصه نشي پورته کولای له دې طریقو څخه او بل دا ورته توصیه ده چې دغه اجازه کول ورته اول قدم ورته په ولایت صغری کې ایښودل دي. یعنې داسې نظیر لري لکه اول کوچنی هلک چې له کوره را ووځي او په (الف) او (ب) باندې شروع وکړي، وروسته له هغې به بیا دی کتابونه وایي، وروسته بیا طالب کیږي بیا ملا کیږي او وروسته له هغې به بیا

کمال ته رسیږي. نو دا هم همد غسي نظیر لري لکه اول هلک چې راځي و کتاب ته، نو اول دخول یې په ولایت صغرٰی کې ده. ټول کمالات یې په مخکې پاتې دي، یعني کمالات ولایت صغرٰی یې ټول په مخکې پاتې دي، کمالات ولایت کبرٰی یې په مخکې پاتې دي، کمالات ولایت علیا یې په مخکې پاتې دي، ولایات انبیاء، کمالات انبیاء او کمالات اولوالعزمه انبیاوو، کمالات د رسولانو؛ دا ټول یې په مخکې پاتې دي. نو داسې به نه کوي چې زه ماذون شوم، چوپانه مې واغوسته نور به زه قرار ناست یم خپل عزت او جاه جلال او خپل شرافت او خپلو مادیاتو پسې به منډې وهم، پښې به لوځوم داسې نه ده.

نه! له دې وروسته به دومره کوشش کوي چې تراوسه یې دومره کوشش نه وي کړی. دا ورته توصیه ده خدای پاک ﷻ دې توفیق ورکړي، خدای تعالی ﷻ دې مّوفق وګرځوي، خدای تعالی ﷻ دې په دغو صفاتو باندې کامیاب وګرځوي، خدای ﷻ دې په دغو صفاتو توفیق ورکړي، خدای تعالی ﷻ دې دا کارونه زموږ او د دوی ټولو د ده ﷻ د رضا لپاره وګرځوي، تاسې هم دعا ورته کوئ او دوی دې هم دغه کوشش کوي.

واخر دعوانا ان الحمد لله رب العلمين

# حقیقت احدیت و تعین اول یا ازل

حضرت عبد الرحمن (سلمه الله المنان) الجامی رحمه الله الباری در بعض ابیات آتی حقیقت احدیت و تعین اول که عبارت از ازل باشد بیان می کند که مصداق (**کان الله ولم یکن معهٗ شيء**) است یعنی خود را بخود میدانست و جمال به کمال او به دیگر مخلوق هویدا نبود، تا استدلال بر وجود او باشد، یعنی اثر از اثار وجود غیر او سبحانه وتعالی ﷻ پیدا نبود که کلمۂ صوفیه وجودیه (همه اوست) درین وقت به ذات پاک او تعالی صادق میشود که بعض اهل تصوف این تاویل اختیار کرده است که درین وقت ازل همه عالم ومخلوق او در علم اجمالی او تعالی ﷻ موجود بود اینک بیان حضرت جامی سلمه الرحمن القوی.

در آن خلوت که هستی بی نشان بود — به کُنج نیستی عالم نهان بود
وجودی بود ز نقش دوئی دور — ز گفتگوی مائی و توئی دور
جمال مطلق از قید مظاهر — بنور خویش هم بر خویش ظاهر

نہ بر آئینہ رویش در میانہ　　نہ زلفش را کشیدہ دست شانہ
نکو روتاب مستوری ندارد　　چو در بندی سر از روزن بر آرد

در چند ابیاتِ آتی ایجاد عالَم از لاتعین بتعین آوردہ کہ تمام مخلوقات واجزاء عالم مظہر تجلیات و نورانیت صفات او تعالی جل جلالہ است.

بیرون از خیمہ ز اقلیم تقدس　　تجلی کرد بر آفاق وانفُس
بہر آئینۂ بنمود روئی　　بہر خاصست از وی گفتگوئی
زذرات جہان آئینہا ساخت زروی خود بہر یک عکس انداخت
زنورش تافت بر خورشید یک تاب　　برون آورد نیل وفر سر از آب
زرویش روی خود آراستہ لیلیٰ　　بہر مویش ز مجنون خاست میلی
سری از جیب ہر کنعان بر آورد　　زلیخا را دمان از جان بر آورد

از ابیات آتی تاآخر بحث معلوم میشود که حضرت جامی
رحمه الله الباری از صوفیای وجودیه می باشد.

جمال اوست هر جا جلوه کرده | ز معشوقان عالم بسته پرده
بهر پرده که بینی پردگی اوست | قضا جنبان هر دل بردگی اوست
دلی کان عاشق خوبان دلجوست | اگر داند و گرنه عاشق اوست
الا تا در غلط نافتی که گویی | که از ما عاشقی و زوی نکوئی
که همچون نیکوئی عشق ستوده | از وسر برزده در تو نموده
توئی اینه و او آئینه آرا | توئی پوشیده و او آشکارا
چو نیکو بنگری اینه هم اوست | نه تنها گنج بل گنجینه هم اوست
بچشم تیز بینت هرچه نیکواست | چو نیکو بنگری عکس رخ اوست
من و تو در میان کاری نداریم | بجز بیهوده پنداری نداریم
خمش کاین قصه پایانی ندارد | بیان او زبان دانی ندارد

همان بهتر که مادر عشق پیچم | که بی این گفتگو هیچم و هیچم
دل فارغ زدرد عشق دل نیست | تن بی درد دل جز آب و گل نیست
اسیر عشق شو اندیشه این است | همه صاحب دلان را پیشه این است
بعشق اوست دل را زندگانی | بشوق اوست جان را کامرانی
بلی میوه زمیوه رنگ گیرد | زخوبان خوبرو خوبی پذیرند

حضرت عثمان مغربی قدس الله سره العالی که ازین جمله یعنی از حضرات توحید وجودی است نظریه وجودیه قرار ذیل تثبیت کرده.

زدریا موج گوناگون برآمد | زبی چونی برنگ چون برآمد
چو یار آمد زخلوت خانه بیرون | همان نقش درون بیرون برآمد
گهی در صورت لیلیٰ فروشد | گهی بر صورت مجنون برآمد
درین دریا ازان امواج هردم | هزاران گوهر مکنون برآمد

حضرت مولانا نورالدین عبدالرحمٰن جامی رحمہ اللہ الرحمٰن الحامی بعد از رویای صادقہ در مدح و تبرک جستن پیر منیر خویش حضرت عبیداللہ احرار (رفع الله درجته و درجة جميع المقربين والابرار) بیان دل پذیر و واقعات جاذبہ امیز اراء نمودہ کہ بعض ابیات پربرکات جاذبہ بعد از شرح رویای صادقہ قلم زد و تحریر خواہد شود.

حضرت جامی قدس اللہ سرہ العالی برای جستن پیر کامل و مکمل گرد جہان و اطراف بہ عزم راسخ پای پیادہ گردیدہ ناگاہ رسید بحضور احرار (قدس اللہ اسرارہ) کہ از اجلۂ اولیاء کرام واز سلسلۂ بزرگان طریقۂ نقشبندیہ است کہ مال و منال و غلہ و خدام و حشم و سیم و زر بلا عدد و بلا حساب داشت.

حضرت جامی رحمہ اللہ پران میکند کہ گلہ ہای شتر و میش در بین زراعت از کدام شخص است؟ پاسخ شنید کہ تمام اموال

